# سپین او تور

(یعني رښتیا او دروغ)

"دیوبندیت په خپل جال کښ نښتې"

(جوہانس.برگ سے بریلی) د کتابچو جواب

کوکب نُورانی اوکاړوی

# علمے کہ رہ بحق ننماید جہالتست

داسې علم چه پرې حق اُونه مومي جهالت دې

(شیخ سعدی رحمۃ اللہ تعالی علیہ)

ادب پیرایۂ نادان و دانا ست
خوش آں کو از ادب خود را بیا راست
ندارم آں مسلماں زادہ را دوست
کہ در دانش فزو دو از ادب کاست

(علامہ اقبال رحمۃ اللہ تعالی علیہ)

د شعرونو ترجمه:

(۱) ادب فرق د بيوقوف او هوښيار دې، خوش بخته دې هغه کس چه د ادب په نيغه لاره روان دې.

(۲) زه نه وينم يو مسلمان دوست، چه په هغه کښې عقل وي او ادب والا نه وي.

# ارشادِ رَبَّانِــی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ؕ

(اے حبيبه صَلَّی اللّٰهُ تَعَالٰی عَلَيۡهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم) تاسو به نه مومئ هٰغه خلق څوك چه اِيمان لري په الله او په ورځ د قِيامت چه هغوئ به محبَّت كوي د هٰغه چا سره چا چه دُښمني اوكړه د الله او د هغه رسُول سره، اګركه هغوئ د هغوئ پلاران وي، يا ځامن يا د هغوئ ورونړه يا د هغوئ نزدې خپلوان [وي]. دا (يعني د الله او د هغه د رسول د دُښمنانو سره محبَّت نه كوونكي) هٰغه خلق دي د چا په زړونو كښې چه (الله) اِيمان ثبت (يعني نقش) كړو او د خپل طرف په رُوح ئې د هغوئ مدد اوكړو او هغوئ به جَنَّتونو ته داخلوي چه د هغې نه لاندې نهرونه بهيږي دا (خلق) به په هغې كښې هميشه اوسيږي. الله د هغوئ نه راضي شو او هغوئ د الله نه راضي شو. دا خلق د الله لښكر دې. (اے خلقو) خبر شئ! بيشكه هُم د الله لښكر كاميابي موندونكې خلق دې.

(اَلۡمجادله سيپاره ۲۸، آيت ۲۲)

# اِنتِساب

د محبوبِ سُبحاني غوثِ صَمَداني شهبازِ لامکاني

قُطبِ رَبَّاني حضرت اَبُو مُحَمَّد مُحیُ الدِّین شیخ

سیِّد عبدُ القادِر حَسَني حُسیني جِیلاني سیِّدُنا

**غَوثِ اعظم** رَحۡمَۃُ اللہِ تَعَالٰی عَلَیۡه په نوم

**اے خُدا توفیقِ اِیمانی بدہ جان و دِل را بودِ عرفانی بدہ**

**ایں غلامِ قادری را از کرم دامنِ محبوب سُبحانی بدہ**

**د شعرونو ترجمه:**

(۱) اے خدایا! مونږ ته د ایمان توفیق راکړې، او په زړه او روح سره خپل عرفان را نصیب کړې.

(۲) په دې غلام قادری باندې د محبوب سبحانی په بَرَکت کرم اوکړې.

**کوکب غفرلهٗ**

# سپین او تور

## (رښتیا او دروغ)

دا کتاب "سفیدوسیاہ" **حضرتِ علّامه، مَولانا، ډاکټر کوکب نورانی اوکاړوی** دَامَتۡ بَرَکَاتُهُمُ الۡعَالِیَه په اردو ژبه کښې لیکلې وو.

**حضرتِ مولانا فضل الرَّحمٰن قادری صاحِب فاضل بهیره** د دې کتاب په آسانه پښتو ژبه کښې د پښتو لوستونکو د پاره د ترجَمه کولو کوشش کړې دې، چه هغوئي د حق نه خبر شي او د دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د شر نه ځان او خپل اولاد او دوستان بچ اوساتي.

که چرې په دې ترجَمه کښې څه غلطي یا کمې، زیاتې اوموموئ نو ستاسو په خِدمت کښې عرض دې چه مُصَنِّف صاحِب ته خبر اوکړئ او د ثواب حقدار جوړ شئ.

پیشکش: ډاکټر کوکب نوراني دَامَتۡ بَرَکَاتُهُمُ الۡعَالِیَه

## فهرست

**نوې چاپ**

بِاِسْمِهٖ سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰی

"**سفید و سیاه**" تر اوسه پورې ډیر ځله په انګریزۍ او اُردو کښې چاپ شوې دي او اوس اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَزَّوَجَلَّ په پښتو کښې د (تور او سپین په نوم) وړومبې ځل چاپ شوې ستاسو په لاسو کښې دې. خپلو مینه لرونکو او لوستونکو ته عرض کووم چه که زما په لیك کښې څه غَلَطي او کوتاهي اووِینئ نو ما ته خبر راکړئ. دا فقیر د خپلې هرې غَلَطۍ او کوتاهۍ د اَللّٰهُ کریم په بارګاه کښې د معافۍ او بخښنې طلبګار دې او خپلو لوستونکو ته هم د معافۍ درخواست کوي. مسعُودِ مِلَّت حضرت پروفیسر ډاکټر محمّد مسعُود احمد صاحِب مظهري قابِلِ قدر مُحَقِّق او صاحِبِ طرز ادیب دې هغوئي ددې کتاب په دریم ځل چاپ کیدو باندې دقیمتي خبرو اظهار کړې وو، د هغې د پاره زه د هغه شکر ګزار یم، او حضرت قبله شیخُ الاسلام والمُسلمین شیخُ القرآن مولانا غلام علي صاحب اشرفی اوکاړوي چه کومه زما حوصله افزائي کړې ده، هغه زه د خپل ځان د پاره سعادت او برکت ګنړم، الله کریم دِ په دې ټولو بُزُرګانو باندې رحم اوفرمائي او عالَمِ اسلام ته دِ د دوئي نه ډیره زیاته فائده اورسوي.

دا دُعا زما د پاره او د ټول جهان والؤ د پاره ده. اٰمین

کراچی1995ء

**کوکب نوراني اوکاړوي غفرله**

## تقریظ

از قلم: حضرت سَیِّدی شیخُ الاسلام و المُسلِمِین، اُستاذُ العُلماء مولانا ابو الفضل غلام علی اشرفی اوکاړوی دامت برکاتهم القدسیه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْم

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَكَفٰى وَسَلٰمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى

دا د فسادونو نه ډك دور د دې امر په شان دې چه ع

تن همه داغ داغ شد پنبه کجا کجا نهم

**ترجمه**: زما بدن ټول داغ داغ شوې دې په کوم کوم ځائ مالوچ کیږدم؟

په داسې [د فساد ډك دَوَر] کښې د یو عالِمِ دِین [د طرفه] چا ته چه الله تَعَالٰی د بصیرت او د پوهې د طاقت سره سره کامِل فراست هم عطا کړي وي. د دِینِ اِسلام او مَسلك و مذهبِ حق اهلِ سُنَّت و جماعت او د دې د مشرانو کامِلینو د دِفاع او د اهلِ باطل د غلط انداز او اعتراضاتو او سوالونو مضبوط، صحیح او مُدَلَّل، تقریري او تحریري جواب ورکول عظیم جِهاد دې. او د دې دِفاعي جِهاد سره د اعتراض کوونکو د کتابونو نه د هغوئي د فاسدو عقیدو ثابِت کول او مضبوط رَد کول د فاضِل مؤلف وسیع نظر او سوچ واضحه دلیل دې. هغه کس ډیر زیات خوش قِسمته او د نصیب خاوند دې څوك چه الله تَعَالٰی د دې عظیم خدمت د پاره منتخب کړې دې. حالانکه د عِلم او فضل ډیر دعوه لرونکي صرف دُنیاوي مصلَحَت د دِیني تبلِیغ په مقابَله کښې د غوره ګڼړلو په وجه خاموشه ناست دي. د فاضل مکرَّم عالَمی مبلغِ اسلام، مؤیدِ مسلكِ اهل سنت، صاحب تقریر و تحریر علامه حافظ کوکب نورانی اوکاړوي سَلَّمَهُ اللهُ تعالٰی د کتاب

”سفید وسیاه“ [سپین او تور] ځینې حصّې مې په غور اولوستلې، د دې په لوستو مې زړه ډېر خوشحاله شو. اللّٰه تعالٰی دِ دوئي ته جزائے خیر او په حق استقامت ورکړي.

اعلٰی حضرت امامِ اهلِ سنت مولانا شاه احمد رضا خان فاضل بریلوی رَحمَۃُ اللّٰہِ تعالٰی عَلَیہ د څوارلسمي صدئ هغه امام او مُجدِّد تېر شوې دې چه په خپل دور کښې د هغوئي مثال نه وو. خپل خو خپل، د هغوئي سخت مخالفینو هم د هغه د تَفَقُّہ فِي الدِّیْن اعتراف کړې دې. اعلٰی حضرت بریلوی رَحمَۃُ اللّٰہِ تعالٰی عَلَیہ د حق په وینا کښې وَیُجَاهِدُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ لَایَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَائِم [ترجمه: او جهاد کوي د اللّٰه په لار کښې، د ملامته کوونکو د ملامتیا نه نه یَریږي] په مثال وو، د خپلې زمانې د هرې مذهبي او سیاسي فتنې هغوئي سخته مقابَله کړي ده او یو لامذهبه او بدمذهبه ئې هُم نه دې معاف کړې او د ټولو بے دینو ګمراهه خلقو ئې داسې مُدَلَّل او زبردست رد کړې دې چه د نن ورځې پورې یو باطل کس هُم د اعلٰی حضرت بریلوی په مقابَله کښې جُرأَت نه دې کړې بلکه د جواب د پاره که چا قلم راخستې دې نو هغه د کندې نه کوهې ته لوېدلې دې. ولنعم ماقال الامام او امام څه ښه فرمائیلي دي ۓ

وہ رضا کے نیزے کی مار ہے کہ عدو کے سینے میں غار ہے
کسے چارہ جوئی کا وار ہے کہ یہ وار وار سے بھی پار ہے

دا د رضا د نیزې ګُزار دې، چه د دُښمن په سینه کښې غار دې
مقابل هیڅ نه شي کولې، دا د ګُزار نه اخوا وتلې ګُزار دې

كله چه د الله تعالىٰ او د نبـی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمْ ګستاخو او بې ادبو هيڅ صحيح جواب ورنکړې شو نو هغوئي په ضد او دښمنئ کښې د اعلىٰ حضرت بريلوى رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰى عَلَيْه په ځينو عبارتونو باندې غلط او د حقيقت خلاف بې ځايه اعتراضونه شروع کړل چه د هغې علمائے حق مُدَلَّل او لاجوابه جوابونه ورکړل، دا کتاب "**سپين او تور**" هم د هغه سلسلې يوه کړئ ده. فاضل مکرم علامه کوکب نورانى په ډير آسان او تحقيقى انداز کښې نه صرف د باطلو خلقو اعتراضونه ختم کړي دي بلکه د ټولو ديوبنديانو، وهابيانو تبليغيانو ئې هُم د هغوئي د کتابونو نه داسې پوسټ مارټم کړې دې چه که څوك ئې د انصاف په نظر اولولي نو د اعتراض هيڅ ګُنجائِش به پاتې نه شي او د وهابيانو، ديوبنديانو د کتابونو د حوالو لوستلو نه پس به هر يو لوستونکې دا وائي چهــ

الجھا ہے پاؤں یار کا زلفِ دراز میں لو آپ اپنے دام میں صیاد آگیا

**مفهوم**: يعني ښکاري پخپله په خپل دام کښې ګير شو.

فاضل مؤَلِّف ته په تقرير او تحرير کښې کمال حاصل دې او هغوئي د هغې په ذريعه په ملك کښې او د مُلك نه بهر د دين او مسلك داسې بهترين خدمت کوي چه هغه د ټول اهلِ سنت و جماعت د پاره قابلِ قدر او د ستائنې باعث دې. اللّٰه تَبَارَكَ تعالىٰ دِ دوئي د خپل باکماله والد صاحب مرحوم او مغفور رښتينې جانشين لري او د دوئي خدمتونه دِ قبول کړي او د اهلِ اسلام د پاره دِ ئې د ګټې او فائدې باعث اوګرځوي.

1995ء

اوکاړا خادمُ الاسلام والمُسلمين، فقير ابوالفضل **غلام علی** غفرله

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْم

# تقدیم

از: حضرت علامه پروفیسر ډاکټر **محمد مسعود احمد** صاحب مظهری

د جنوبي افریقا نه یو انګریزي کتاب "*جوہانس برگ سے بریلی*" (From Joahannesburg To Bareli)(غالباً) په ۱۹۸۸ء کښ په دریو حصّو کښ چاپ شوې وو. د مصنف نوم نه وو لیکلې شوې، البته د وړومبئ پاڼړې نه اندازه لګېدله چه دا کتاب د ډربن نه چاپ شوي د یوې کتابچې جواب دې چه په هغې کښ د مصنف د وینا مطابق د علمائے دیوبند افکار او خیالات په غلط رنګ کښ پیش کړې شوي وو. علامه کوکب نوراني اوکاړوی (اللّٰه تَعَالٰی دِ د هغوئي په عمر کښ برکت واچوي) د انګریزئ د هغه کتاب د "سُفید و سیاه" [سپین او تور] په نوم په خپل **مخصوص** انداز کښ په اردو کښ جواب اولیکلو او هغه په ۱۹۸۹ء کښ چاپ شو، دویم ځل په ۱۹۹۱ء کښ چاپ شو، اوس دریم ځل چاپ (مطبوعه ۱۹۹۵ء) ستاسو په لاسو کښ دې. د "سفید و سیاه" [سپین او تور] په انګریزئ کښ هم ترجمه چاپ شوي ده. په دریم ځل چاپ کښ ځینې اضافې هم شوي دي او علامه موصوف پکښ د یو سل ووه کتابونو او رسالو نه استفاد کړي ده او د دلیل او براهین په رنړا کښ ئې خپل خیالات ښکاره کړي دي چه د هغې نه انکار کول مشکل ښکاریږي....

په ”سفید وسیاه“ [سپین او تور] کښې د مخالفینو د اعتراضونو او الزاماتو د جوابونو سره سره د حُضُورِانور ﷺ او د نورو انبیاء علیهم السلام او د اولیاءِ کرامو رحمة الله علیهم او د امام احمد رضا خان بریلوی رحمة الله تعالی علیه په باره کښې د علمائے دیوبند د افکارو او خیالاتو په سختئ سره محاسبه شوي ده او د ذِکر کړې شوي انګریزي کتاب د ځیني علمي خیانتونو ښودنه هم پکښې شوي ده.... د فقیر په خیال کښې په دې جدید دور کښې علمی خیانتونه کوونکو ته د پښیمانتیا او پریشانئ نه سوا هیڅ څه په لاس نه ورځي....داسې خبرې د اهلِ عِلم سره نه ښائي....

د حُضُورِ اکرم صلی الله علیه وآله وسلم پاك سیرت لیکونکي، د هغوئي په شان کښې قصیدې او نعتونه لیکونکي او د هغوئي د ناموس حفاظت کوونکي خوش بخته او خوش نصیبه دي.د اللّٰه تعالٰی په فضل دا سعادت علامه کوکب نوراني اوکاړوي ته حاصل دې چه هغوئي د ناموس رسالت (صلی الله علیه وآله وسلم) د حفاظت د پاره سر په تلي کښې ګرځوي. مولٰی تعالٰی دِ د هغوئي درجات اوچت کړی او د دین او مسلك په خدمت باندې دِ استقامت ورکړي [او اللّٰه تَعَالٰی دِ ئې حفاظت اوفرمائي]. آمین

د اعتراضاتو دا سلسله د یوې صدئ نه د زیات وخت نه جاري ده. د علمائے حق د طرف نه د اعتراضاتو او الزاماتو برابر جوابات ورکول کیږي خو اعتراضات کوونکي او الزامونه لګوونکي، هُم هغه اعتراضونه او الزامونه مسلسل بیا بیا کوي..... چه دلائل او شواهد پیش کړې شي نو

قائل کیدل پکار دي..... د ضد او بحث نه زمونږه توجه د دښمنانِ اسلام هندوانو، یهود او نصارٰی نه اوړي او بل طرف ته شي او د (دښمنانِ اسلام خلاف) د دین د تبلیغ کار اودریږی ..... اوس وخت راغلې دې چه مونږه د علمائے حق خبرې تسلیم کړو او یو شو، د ماضي [یعني تیر وخت] غلطیانې بیا نه کوو، کومو خلقو چه غلطۍ کړي دي، هغوئي د هُغوئي په حال پریږدو او لاس ترې واخلو او د خپل اِیمان حِفاظت ته توجُّه ورکړو.....

د ډیرې مودې نه دا سلسله راروانه ده، یو طرف ته علمائے اهل سنت دي او بل طرف ته د دوئي مخالفین، (هغوئي هم د هُم دوئي نه جُدا شوې خلق دې او دوئي ئې پریښودي دي [بل طرف ته تلي دي])..... د هغوئي شکایت دا دې چه "علمائے اهل سنت د حُضُورِ اکرَم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّم شان ولې زیاتوي؟" او د علمائے اهل سنت شکایت دا دې چه د هغوئي مخالفین د "حُضُورِ اکرَم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّم شان ولې کموي؟"..... شکایتونه خو نور هم دي خو غټ شکایت هُم دا دې..... د قرآنِ کریم په رنړا کښې مونږه د دې شکایتونو فیصله پخپله کولې شو. د قرآنِ کریم د مطالَعې نه معلومیږي چه د محبوبانو او ګرانو شان زیاتول د الله تعالٰی سنت دې او د هغوئي شان کمول، د ابلیسِ لعین، کافِرو، مشرکانو، یهودیانو او عیسایانو عادت دې....

دا خبره د توجه قابِله ده چه کله هم د دواړو مقابله وي نو علمائے اهلِسُنَّت داسې آیتونه او احادیث ګوري چه په هغې کښې د حُضُورِ انور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّم د اوچت شان ذِکر شوې وي او د دوئي مخالفین داسې

آیتونه او احادیث ګوري چه د هغې په ذریعه هغوئي د خپل خیال مطابق د حُضُور سَیِّدِ عالَم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ شان کمولې شي..... د دوارړو [ډلو د] حضراتو د اوچت فِکر او سپك فکر اندازه تاسو پخپله لګولې شئ.....

په حقیقت کښې د محبت فطرت دا دې چه هغه، نه د محبوب عیب بیانوي او نه د هغه په شان کښې عیب اوریدل خوښوي. دا د محبت د فِطرت خلاف خبره ده ..... هغه خو په هر حال کښې د محبوب تعریف او صِفَت اوریدل خوښوي..... تاسو پخپله فیصله اوکړئ چه د چا اندازِ فِکر د محبت د فِطرت مطابق دې او د چا اندازِ فِکر د محبت د فِطرت خلاف دې؟

محبت کوونکي هغه دي څوك چه د اهلِ سُنَّت و جماعت په نوم یادیږي، دا خلق د حُضُورِ انور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ، اهلِ بیتِ اطهار، ازواجِ مُطهّرات، صحابهٔ کرام، تابعین، تبع تابعین، اَئِمَّه مجتَهِدین، محَدِّثین رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او د الله اولیاؤ ټولو سره محبت کوي، هغوئي صرف د نفرت کوونکو نه نفرت کوي ..... که غور اوکړئ نو په دې حقیقت به پوهه شئ چه د یو دوو ډلو نه علاوه د ټولو ډلو مشران یا د مشرانو مشران په دې صراط مستقیم [یعني نیغه لاره] او په دِین حنیف باندې وو چا ته چه اهلِ سنت وئیل کیږي..... د دنیا ټول دښمنانِ اسلام د سُنِّي حکومتونو یا د سُنِّي عوامو دُښمنان دي..... یو انګریز نو مسلم [یعني نوې مسلمان شوي] ډاکټر محمد هارون چه دا ښکاره حقیقت اولیدو نو ښکاره ئې اووئیل چه "سُنّي اسلام رښتیني اسلام دې ځکه چه ټوله دُنیا هم د دوئي دښمنه ده، ټول عالَم د دوئي د جذبهٔ ایماني او جدبهٔ حُریت نه په یَره کښې دي......؟

دا وخت د عالَمی سازشونو په نتیجه کښې نوي نوي ډلي راپیدا کیږي او د فِکر او نظریه د اختلاف سیلاب راوتلې دې، هره ډله افرادي قوت د ”اهلِ سنت“ نه حاصلوي، مونږه دغه ډلو ته روان خلق د پوهه کولو په ځائ په آسانئ تللو ته پریږدو، دا د عقل او حکمت خلاف خبره ده.... خپل ورك شوي دولت پسې څوك خفه نه وي، هر يو كس ئې د حاصلولو خواهش لري او كوشش كوي چه بيرته په لاس راشي.....

مونږ ته هم كوشش كول پكار دي چه زمونږه افرادي قوت مونږ ته بيرته په لاس راشي او مونږه مُتَّحِد شو، بيا به دُنيا د اهلِ سنت و جماعت هٰغه شان و شوكت يو ځل بيا اووينى كوم [شان و شوكت] ئې چه يوه نيمه صدئ مخكښې د سلطنتِ عثمانيه په صورت كښې ليدلې وو.....

اٰمِين بِجاهِ سَيِّدِ الْمُرْسَلِينَ رَحْمَةٍ لِّلْعٰلَمِين.

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَاَزْوَاجِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَسَلَّمْ

كراچى

۷ شوال المُكَرَّم ۱٤۱۵ھ،

9 مارچ 1995ء

**محمد مسعود احمد** عفی عنہ

اَللّٰہُ رَبُّ مُحَمَّدٍ صَلّٰی عَلَیْہِ وَسَلَّمَا

# پيش نوشت

دا سعادت ما له د بادشاهۍ نه زيات دي چه زما ټاکنه د ناموس رسالت (صَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم) د حفاظت د پاره شوي ده. زه دا ګڼړم چه دا صرف د انتخاب خبره ده چه الله تَعَالٰی زه د نبــی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ د صِفَت د پاره ټاکلي يم. دا داسې اِعزاز دې چه په دې ښوك خومره ناز اوکړي کم دي. د رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ مدح او ستائنه کول زما د ربِّ کريم واجِب حُکم دي . خوږ نبــی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ د خپل مداح [يعني صِفَت بيانوونکي] حضرت حسَّان رَضِیَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ د پاره داسې دُعا کوي: اَللّٰهُمَّ اَيِّدْهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ (اے الله د روحُ القدس په ذريعه د ده مدد اوکړې. (مسلم شريف) او د جبريل امين (عَلَيْهِ السَّلَام) بيشميره شهادتونه تائيد کوي چه د جبريل امين عَلَيْهِ السَّلَام پيدائش د نبوت د احترام د پاره شوې دې. هٰغه روحِ القدس، جبريل (عَلَيْهِ السَّلَام) نن هم د ناموس رسالت (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ) د محافظو مدد کوي. مونږ ته وئيل شوي دي چه په ښو [يعني نيکو] کارونو باندې د الله تَعَالٰی رضامندي حاصليږي او فرښتې د هغه کس نګراني کوي ښوك چه په "خير" کښې مشغول اوسي.

دا عاجزه (د بدن په لحاظ) فَرشي دې او اَلْحَمْدُ لِلّٰه د عقيدې په اعتبار عَرشي دې، او دغسې هغه د هر نوري او قُدسي هَم عقيده

دي. ذِکر رسول (صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وآلِہٖ وَسَلَّمْ) او مِدحَتِ رسول چه د چا ژوند دي، د دوئي نه لږ تپوس اوکړئ چه دوئي ته څومره د زړه اطمينان او خوند نصيب کيږي، دوئي دا يقين لري چه هُم دا عشق به د دوئي د خلاصي ذريعه جوړيږي، هُم دا يو صداقت به د الله تعالٰی په بارګاه کښې د دوئي سفارش وي. د آلِ رسول د دې خادم هم بس دا يو خواهش دې چه زما يو يو ساعت د مدَنی تاجدار، آقائے نامدار صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وآلِہٖ وَسَلَّمْ په ياد کښې تيريږي. [کاش چه] په جَنَّتُ الفِردوس کښې راته د هغوئي د غلامانو په خوا کښې څه ځائ نصيب شي، نور يو دُنياوي څيز هُم نه غواړم.

"وَرَفَعۡنَا لَكَ ذِكۡرَكَ" د الله تَعَالٰی اِرشاد دې. د خپل محبوب صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وآلِہٖ وَسَلَّمْ ذِکر خو پخپله الله تَعَالٰی اوچت کړې دې. زمونږه څه حيثيت دې چه د الله تَعَالٰی د محبوب صِفات بيان کړې شو او د رسولِ کريم صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وآلِہٖ وَسَلَّمْ عَظَمت [يعني شان] زمونږ د کوششونو مُحتاجه نه دې، مونږه عاجزان به د هغوئي (صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وآلِہٖ وَسَلَّمْ) په عزَّت او توقير کښې څه اضافه اوکړې شو، دا زمونږ د دُنيادارو د وَس [يعنی طاقت] نه بهر خبره ده، دا بيان خو په آسمانونو کښې سرفراز د جبريل امين صِفَت دې، دا خو د هغه وَحۡدَهٗ لَا شَرِيكَ کار دې. بس زمونږ د پاره دومره کافي دي چه مونږه د هغه خوږ آقا صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وآلِہٖ وَسَلَّمْ نوم اخستونکي يو، د هغوئي په

ستائنه کښې زمونږه ذِکر زمونږ د امکان په قدر دې، زمونږ د توفیق مطابق دې، او دا فقیر هُم دا وائي چه څومره توفیق رانصیب شوې دې او څومره طاقت را کړې شوې دې چه هغه د خپل ماوٰی ملجا [خوږ نبي صَلَّی اللّٰهُ تَعَالٰی عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم] په نوم [قربان] کړې شي، دا ټولې شپې او ورځې د هغوئي د یادولو او د هغوئي د احوال او ذِکر د پاره ولې وقف نه کړې شي. که د دې نه بله غټه وظیفه او د ژوند تیرولو بله بهتره طریقه وي نو ما فقیر بنده ته دِ اوښودلې شي. او د رومي، جامي، سعدي او شیرازي نه دِ تپوس اوکړې شي چه د رسول صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ د تعریف او مِدحت د پاره ئې د الفاظو په تلاش کښې ولې خپل عمرونه ختم کړل، ټول عُمر ئې د الفاظو او انداز په انتخاب کښې خپله شپه او ورځ یو کړي وو، د پاره د دې چه یو داسې لفظ او جمله په لاس راشي چه د نبـی کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ په دربار کښې قبوله شي. څوك چه د رسولِ پاك صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ ذِکر کوي، هغه د دغه عالِمَانو او ثناخوانو سره نسبت لري بلکه هغه خو د ربِّ کریم عَزَّوَجَلَّ سره نسبت لري ځکه چه د هغه ټول کتاب [یعني ټول قرآن] د رسول (صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ) د صِفاتو نه ډك دې، دا بِنائے رسول (صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ) بَر بنائے رسول (صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ) ده. قرآن د الله کلام دې او نبـی آخرُ الزمان صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ حق دې. زما ایمان دې چه که زمونږه محمد (صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ) نه وې نو قرآن به نه وو، او نه به نور څه وو.

دې خاکسار د نبـی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمْ د ذِکر نه علاوه بله وظيفه هم د ځان د پاره مقرره کړي ده. د دې دروغژنو د سرونو ټيټولو، ځوك چه زما د آقا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمْ په باره کښې د کړو خبرو مجرمان ګرځيدلي دي. زما سره يوه ژبه او يو قلم دې او ما ته چه څومره طاقت راکړې شوې دې، زه د خپل ځان سره او د هر نسبت لرونکـي سره وعده کووم چه اِنْ شَآءَاللّٰه تَعَالٰی، د آخرې ساه پورې به د هُغه ګستاخانو سره مقابَله کووم ځوك چه زما رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمْ د عزَّت او شان په باره کښې ناقابلِ برداشت او ناقابلِ مُعافی کوتاهي کوي. چا ته چه د رسولِ پاك صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمْ په عظمت او تقديس کښې څه شك دې، د هغه په عقل او پوهه کښې ضرور څه کمي دې، ځوك چه د رسولِ کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمْ په معصوم والي او عظمت کښې عيبونه لټوي، هغه د انسانيت د جوهر نه خالي دې، هغه زما رسولِ کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمْ هډو پيژندلي نه دې.

ظُلم خو دا دې چه ځوك ځان ته ځپله د اسلام مددګار او منونکـي وائي په هغوئي کښې ځيني خلق د خوږ نبــی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمْ په باره کښې رد بد وائي، د هغوئي طور طريقې د شيطان په شان دې. هغه هُم شيطان وو چا چه د ټولو نه اوّل د نبوت د منصب او عظمت تسليمولو نه انکـار کړې وو. نمرود، فرعون، ابوجهل او وليد بن مغيره هُم د شيطان په صورت وو. ځپله قرآن ګواه دې چه په نبــی

کریم صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ باندې اعتراض کول د کافِرو او مُنکِرینو طریقه ده، او د نبوت عصمت او پاکوالي او صدااقت او عظمت بیانول د الله تَعَالٰی سُنَّت دي. او د شریعت او سنت فرمان دې چه په فرضو کښ په یو شو وجهو رعایت کیدې شي، یعني نمونځ که په ولاړه نه شي کولې نو په ناسته دِ اوکړي یا دِ په اشاره اوکړي، خو د نبی اکرم صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ د تعظیم په باب کښ هیڅ رعایت نشته. په قرآنِ پاك کښ وَضاحت دې، اللّٰه تَعَالٰی خپل حبیب صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ ته فرمائي چه: که تاسو د خپل کریمانه عظیمو اخلاقو او د خپل شانِ رَحمت په وجه د خپلو ګستاخانو د پاره مونږ ته د مُعافئ درخواست هم اوکړې نو هُم مونږه هغه ګستاخ هیڅ کله نه مُعاف کوو، د محبوب (صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ) د ګستاخئ ګناه د معافئ لائِقه نه ده. دي ګستاخانو د نبی پاك صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ په باره کښ څه څه بیهوده خبرې نه دي کړې.....

**مَعَاذَاللہ ثُمَّ مَعَاذَاللہ**، دوئي د نبی کریم صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ علم د شیطان د علم نه کم ګرځولې دي او دوئي د نبی کریم صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ علمِ غیب د څاروو او لیونو په مثل ګڼړلې دې. دا کوم خلق دي چه د نبی صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ کلمه لولي او د نبی صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ په کمالِ نبوت او جَمالِ صداقت کښ شك کوي. د نورو به څه اووائیو، هغوئي خو کلمه نه وائي، خو شوك چه د اسلام په محراب او منبر ناست دي او د دِینِ محمدی (عَلٰی صَاحِبِهَا الصَّلٰوۃُ وَالسَّلَام) ذِکر د هغوئي د هرې ورځې معمول

جوړ شوې دي، هغوئی له خو لحاظ ساتل پکار دي چه د هغوئي خبره کوم حد ته رسي، آیا د ګستاخئ په حد کښې داخلیږي. [دا لحاظ ساتل پکار دي چه] کوم د ادب مقام دې، د کوم ځائ پورې تاسو ته اختیار دې؟ دا د حق دعوٰی کوونکي خو بنیادونه ړقوي. دا خو د هُغه خاخ په پریك کولو پسې شوي دي په کوم خاخ چه ناست دي.

دا ډیر د زړه سوزلو او د زړه ازارولو خبرې کوي. ولې دوئي ته دا اندازه نشته چه که څوك د دوئي د ډلې په مشر پورې صرف درې خبرې اوکړي نو د دوئي څه حال وي، بالکل لیوني شي نو ولې دوئي دا سوچ نه کوي چه د الله د حبیب صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ په شان کښې توهین او بې ادبي کولو نه د الله تَعَالٰی د حبیبِ کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ (زما روح دِ پرې قربان شي) د غلامانو په زړونو به څه تیریږی ..... دا خو سراسر د محبت او عقیدت معامَله ده، د عشق مسئله ده، د عاشق په مخکښې خو دِ څوك د هغه د محبوب عیب بیان کړي، چه هغه د هغه عیب بیانوونکي خُله شلوي که نه..... دا ګستاخان وائي چه "د الله نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ زمونږ په شان یو بشر وو." نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ خو لا نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ دې، دا فقیر چیلنج کوي چه د خپلې ډلې په مشایخو [عالِمَانو] کښې، یو زما د شاهِ جیلان، غوثِ پاك رَحْمَةُ اللهِ تعالٰی عَلَيْه په مِثل اوښائي. دوئي وائي چه "د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ نه به هم داسې غلطیانې کیدلې څنګه چه د عامو انسانو نه کیږي." او وائي چه "نبي صَلَّى الله

عَلَيْهِ‌وَآلِهِ‌وَسَلَّمَ ته څه خبر دي!“ او دا خلق د الله تعالیٰ په باره کښې وائي چه ”الله هر وخت د هر غیب نه باخبره نه دې، کله چه هغه ته د کومو غیبو د حال د معلومولو ضرورت شي، نو معلوم ئې کړي.....
[دوئي وائي چه] الله دروغ وئیلې شي او هغه دروغ وئیلي دي.“ (په خپل ګمان کښې) ځان ته عقلمند او پوهه وئیلو والا دا خلق دومره د غټې تباهئ خبرې کوي.....

زمونږ عقیده ده چه یو عام سړې نبــی نه شي کیدې، چا ته چه نبوت عطا شو هغه عام سړې پاتې نه شو، هغه ”نبــی“ شو، او نبــی د الله تعالیٰ د طرف نه وي او الله تَعَالٰی قادرِ مطلق دې. دا اختیار په کائنات کښې بل د هیڅ چا سره نشته چه هغه یو کس نبــی جوړ کړي او په عامو خلقو کښې دا اختیار هیڅ چا ته حاصل نه دې چه هغه د یو کس د نبوت اعلان اوکړي. نبــی صرف نبــی وي. کامل او مطلق نبــی، د الله فرمان رسوونکــې، د هغه پیغام بر، دا منصب الله تعالیٰ هغه کس ته عطا کړې دې څوك ئې چه د دې منصب اهل جوړ کړې دې، د دې مستحق ئې جوړ کړې وي، هر څوك ئې نبــی نه دې جوړ کړې. که چا د خپل بدن هر یو اندام د الله د پاره وقف کړې وي او د هغه هر هر ساعت د الله په یاد کښې تیریږی او هغه د دُنیا نه ډېره اختیار کړي وي او ژوند ئې ټول د الله په بارګاه کښې قربان کړې وي نو هغه ته هم الله تَعَالٰی د نبــی مقام نه ورکوي. د نبــی مقام، د

نبــی فضیلت هغه هٰغه چا ته عطا کړې دې څوك چه هغه خپل خاص مقرَّب او خپل مقبول بنده جوړ کړې دې او اللّٰه تَعَالٰی د رسولِ کریم، نبــی آخر الزمان صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ نه پس دا سلسله ختمه کړې ده. زما د آقا خوږ مصطفٰی محمدِ عربی صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ سره د اللّٰه تَعَالٰی د خاص مَحبَّت د دې نه غټ بل څه ثبوت کیدې شي.

ما د دې کتاب نه مخکښې په خپل کتاب ”د دیوبند نه بریلی ته (حقیقت)“ کښې د ګستاخانِ رسول سره د اهلِ سنت و جماعت د اختلاف په حقائقو باندې خبرې کړې دې او د خپل طرف نه مې د دې اختلاف حل هم بیان کړې وو. هغه کتاب د ”مولانا اوکاړوي (رَحۡمَۃُ اللّٰہِ تَعَالٰی عَلَیۡہ) اکادمی (العالَمی)“ د طرف نه (په 1988ء کښې) په جنوبي افریقا کښې په انګریزئ کښې او په پاکستان کښې په اردو کښې چاپ شوې وو او د اللّٰه تَعَالٰی په فضل ډیر زیات مقبول شوې وو او د زرګاؤ خلقو د عقیدو د اصلاح سبب جوړ شوې وو.

د تبلیغ دِین په سلسله کښې جنوبي افریقا ته د دویم سفر په دوران کښې دې عاجز ته هلته دوستانو د ”جوہانس برگ سے بریلی“ په نوم درې کتابچې ورکړې او د هغې په باره کښې ئې وضاحت اوغوښتلو. په جنوبي افریقا کښې مې د شپې او ورځې د مصروفیاتو په وجه د هغه کتابچو مطالَعه په غور سره اُو نه کړې شوه، بیا هم د یو څو صفحو د مطالَعې نه په دې حقیقت پوهه شوم چه هغه درې

واړه کتابچې زمونږ د اهلِ سنت و جماعت خلاف په ډیره سپکه ژبه کښې لیکلې شوي وې او د بهتان او تهمتونو انبار وو. ما په جنوبي افریقا کښې خپلو دوستانو سره د هغه کتابچو د جواب لیکلو وعده کړې وه. د رَبِّ کریم جَلَّ مَجدُهُ الکریم کرم دې او د هغه د محترم او معزَّز رسول صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمَ مهرباني ده چه دا خادمِ اهلِ سُنَّت، اوس د هغه کتابچود جواب اولنۍ حصّه چاپ کولو کښې کامیاب شو. ما کوشش کړې دې چه ”د جوہانس برگ سے بریلی“ د مصنف او دیوبندي ډلې د مشرانو شکلونه تاسو ته هُم د هغوئي په آئینه کښې اوښائم. محترم لوستونکي به اوګوري چه د ټولو اعتراضونو جوابونه د علمائے دیوبند د تحریرونو نه ورکړې شوي دي. د جنوبي افریقا په دویم سفر کښې د دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د ټولو نه غټې مرکزي ادارې ”میازفارم“ ته د حُجَّت قائمولو د پاره پخپله ورغلې ووم او عرض مې ورته کړې وو چه زما په کتب خانه کښې د علمائے دیوبند کتابونه موجود دي او د هغه کتابونو نه به دا خادمِ اهل سنت و جماعت د هغه عقیدو د صحیح کیدلو ثبوت پیش کوي، د کومو [عقیدو په وجه] چه د دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو عالِمَان مونږ اَهلِسُنَّت و جَماعت ته مشرکان او بدعتیان وائي.

دا وضاحت ضروري دې چه دا فقیر کله هُم انتشار او افتراق نه خوښوي. د عالَمِ اسلام د یو والي د پاره دِ زما ځان قربان وي، خو د یو والي مطلب مصلحت آمیزه خاموشي او منافَقت نه دې پکار. چه

د ښمنۍ سُلوك په سختۍ سره جاري وي، چه د حقیقت خلاف عمل جاري وي، چه د خلقو د ګمراه کولو او [د اسلام] په بنیادونو باندې سختې حملې جاري وي، نو [په داسې حالاتو کښې] زما په نِزد خاموشي یوه ګناه ده، بلکه د ګناه نه هم بدتره ده. دا هیڅ مصلَحت نه دې، دا طریقه د سیاسي خلقو ده او د هغوئي سره ښائي.

که دا څه سازش وي نو دا راښکاره کول زما د پاره لازم دي. د علمائے دیوبند د حوالو او حاشیو [وړاندې کولو] مقصد دا دې چه د حقیقت خوښولو والا او د حق طلب کوونکي د دې "سپین او تور" [کتاب] نه ښه اندازه اولګوي چه [په اَهلِسُنَّت و جَماعت باندې] د تُهمَت لګوونکو خپلې لمَنې څومره ککړې دي، د هغوئي په وینا او عمل کښې څومره فرق دې. د دې کتاب کښې د "*جوہانس برگ سے بریلی*" د دریو حصو د مندرجاتو کرښه په کرښه جواب خو نه دې ورکړې شوې، خو د الله په توفیق سره دې خادم د ټولو اعتراضونو مجموعی جوابونه ورکړي دي.

دا زمونږ د رسولِ کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ د ناموس مُعامَله ده. زمونږ ایمان دې چه هغوئي د ټول جهان، او ټول مخلوق نه افضل دې. د هغوئي عشق د همیشه ژوند دې، د هغوئي د عزت او سربلندۍ د پاره زمونږه سرونه حاضر دي. د هغوئي په جناب کښې په اوچت آواز خبرې کوونکي زمونږ په نِزد نالائقه دي، د داسې نالائقه خلقو

سرونه تیتبول او راښکاره کول عین جهاد دي.

د الله تَعَالٰی نه امید لرم چه د دې کمتر فقیر دا کوشش به د دیوبندی وهابی ډلې د ملګرو د پاره دعوتِ فِکر او د صحیحُ العقیده اهلِ سنت و جماعت د پاره د قرآن و سنت مطابق په صحیح عقیدو او اعمالو باندې د استقامت سبب اوګرځي، اِنْ شَآءَ اللّٰهُ تَعَالٰی

زما د پاره دُعا اوکړئ چه الله تَعَالٰی د خپل حبیب صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د دِین د تبلیغ او اِشاعت د پاره زما دا کمزوری خدمتونه قبول کړي، ما ته زما د آقا صَلَّی اللّٰهُ تَعَالٰی عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم د عِزَّت او عظَمت د تحفظ د پاره علمِ نافِع او شرح صدر را عطا کړي، د حق حق او د باطل باطل ثابتولو د پاره ما ته خپل مدد او نصرت را عطا کړي، اٰمین

د "جوہانس برگ سے بریلی" کتابچې په انګریزئ کښې دي، د دې کتابچو جواب په انګریزئ کښې هم ورکړې شوې دې کوم چه د "مولانا اوکاړوی اکادمی (العالَمی)" د (جنوبي افریقا) ناظم اعلٰی مولانا محمد بانا شفیعي قادری، د ډربن نه شائع کوي[1]

د ضیاءُ القرآن پبلی کیشنز مشر جناب الحاج محمد حفیظ البرکات شاه د "نوری تستعلیق" کمپیوټر پلان حاصل کړې دې. د دې کتاب اردو متن اوس په دې خطاطی کښې د شاه صاحب په مدد سره بدل کړې شو او چاپ کړې شو.

---

1 اوس دا کتاب په انګریزئ کښې د پاکستان نه هم شائع کیږي.

د مسوَده بینی (پروف ریډنګ) د پاره ډیر د محنت نه کار اخستې شوې دې، د دې باوجود که څه کوتاهی شوي وي نو معذرت غوارم او د خپل ملګری پیر مغان جناب شکیل عادل زاده په هره مرسته باندې به سوا د دې نه څه اووائم چه ؎

*ہر مُو مرے بدن پہ زبانِ سپاس ہے*

**ترجمه**: زما د بدن هر یو ویښته د هغه ستائنه کوي

کراچی　　　**کوکب نورانی اوکاړوي** غُفِرَلَهٗ

1989ء

بِسۡمِ اللّٰہِ وَالۡحَمۡدُ لِلّٰہِ وَالصَّلٰوۃُ وَالسَّلامُ عَلٰی رَسُوۡلِ اللّٰہِ

دې خادمِ اَهلِسُنَّت يو مختصر كتاب "د ديوبند نه بريلي ته (حقيقت)" په عنوان د خپلو لوستونكو په خدمت كښې پيش كړې دې. د هغه كتاب په مندرجاتو كښې د سُنِّي (بريلوى) او ديوبندى وهابي د اختلاف بنيادى حقيقت او د دې اختلافاتو د ختمولو حل وو. [كه څوك وائي چه] "زه نه منم" [نو دا] خو لاعلاجه مرض دې خو بيا به هم هر عقلمند، حقيقت خوښوونكې، او مُنصِف مزاجه خلقو ته به د دې كتاب د مندرجاتو نه ښه معلومه شوې وې چه حق څه دې او دا اختلاف كوم چه د دوو ډلو په مينځ كښې دې هغه قطعي او اُصولي دې. د اللّٰه تَعَالٰی فضل او احسان دې چه د دې كمتر هغه كتاب مقبول شو او د زرګاؤ خلقو د پاره د اصلاحِ عقائد او په حق باندې د ثابت قدمئ سبب اوګرځيدلو. د دې سبب زما الفاظ او انداز نه وو بلكه صرف د حق قُوَّت او د نبـي كريم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمۡ فيض [يعني بَرَكت] وو.

دُښمنانو او مخالفه خلقو دا هم وئيلي وو چه "دا د اسلام كوم خدمت دې، كه كار كوئ نو د غير مُسلمه خلقو خلاف ئې اوكړئ. د معاشرې د ترقئ كار اوكړئ، وغيره وغيره." عجيبه خبره ده كه دا خبره د هغوئي په باره كښې اوكړې شي نو د هغوئي تندي به تراوه شي. بيا هم د دې په جواب كښې اولنئ **خبره** دا عرض كووم چه د دُښمنانو

دُښمني او مخالفت که صرف د ضِد او نه منلو په بُنیاد وي، نو بیا داسې جملې اثر نه کوي ځکه چه د دې خبرو شا ته په اصل کښې دا راز پټ وي چه چرې د دغه سرکشو ګُستاخۍ ښکاره نه کړې شي او د هغوئي د بدو کارونو نوټس وانخستې شي او د هغوئي کاروبار روان اوسي، ګنې دا ښکاره خبره ده چه د هغوئي د اصلیت پیژندلو نه پس به خلق د هغوئي ملګري نه جوړیږي. **دویمه خبره** دا ده چه سرکشه خلق غالباً د تصویر د یو مخ کتلو عادت لري او هغه هم د خپل کم نظرۍ په وجه ښه او صحیح نه شي کتلې او که دواړه مخونه ئې صحیح اوګوري نو بیا به د اختلاف ګنجائش پاتې نه وي، ځکه چه حقیقت دروغ کول آسان نه دي. **دریمه خبره** دا ده چه چا پخپله خپل ځانونه د دوئی مشران جوړ کړي دي دوئي د هغوئي مُحتاجه او خوشامدې کوونکي وي. د شعور، عقل، پوهې او د اخلاقو کوم یو صِفَت په هغوئي کښې نه وي. که لږه ډیره پوهه پکښې وي نو د هغې د استعمال اجازت ورته نه وي، ځکه چه کله څوك په چا خرڅ شي نو بیا د خپلې پوهې او خوښې څه ګنجائش نه لري، **څلورمه خبره** دا ده چه د چا د منفی سوچ عادت جوړ شي د هغه نه د مثبت فِکر توقع لرل بیوقوفي ده. **پینځمه خبره** دا ده چه خپل مقابل ته په خپله آئینه کښې کتل او د حقیقت نه سترګې پټول چه د چا طریقه وي د هغه نه د حقیقت د رائے امید لرل فُضُول دي.

افسوس چه دا ديوبنديان وهابيان د علمائے حق اَهلِسُنَّت وجَماعت د بې مثاله خدمتونو نه د خبرداره كيدو باوجود د حقيقت د تسليمولو حوصله نه لري، د علمائے ديوبند تحرير او تقرير ګواه دي چه د سرې توب سره د دوئي څه كار نشته، خو چه رښتيا اووايم نو مونږه اَهلِسُنَّت ته څه نقصان نشته، بلكه كله چه دوئي مونږه د خپلو اعتراضونو نښه جوړوي نو يو قِسم د زړه خوشحالی رانصيب كيږي او هغه په دې وجه چه د څو پورې دوئي په مونږه پورې خبرې كوي نو كم از كم د هغه وخته پورې مونږه دوئي د الله د خوږ رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ د بې عيبه ذاتِ بابركات په شان كښې د ګستاخئ او بې ادبئ نه د منع كولو سبب جوړ شو. ولې دا كاميابي څه كمه ده؟ بلكه د خپل ذات د حده پورې خو زه دا غوارمه چه دوئي ما ته هر څه وائي اُو دِ وائي خو د خالق او مخلوق د محبوبِ كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ په اوچت شان كښې دِ ګستاخي او بې ادبي نه كوي او زمونږه اِيماني غيرت ته دِ چيلينج نه كوي.

زه څه يم او زما حقيقت څه دې! د الله تَعَالٰی په پوره كائنات كښې څوك دا دعوٰی نه شي كولې چه هغه د شانِ مصطفٰی (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ) نه پوره خبر دې. د الله تَعَالٰی خوږ رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ او مقصودِ كائنات ته د خپل ځان په شان بشر وئيل يا صرف يو بشر وئيونكي دا (ديوبنديان وهابيان تبليغيان) بد زبانه د يو [عام] انسان د قوت او صلاحيت او خصوصياتو باندې كماحقّه نه شي پوهيدلې نو د الله تَعَالٰی د خوږ حبيب

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د صِفاتو حد به څه بيان کړې شي؟ د حضرت بايزيد بِسطامى، مولانا روم، شيخ سعدى، مولانا جامى او شيخ عبدالحق مُحَدِّث دهلوى عليهم الرحمة په شان عارفانو خو د خپلې عاجزئ اظهار کړې دې خو دا بد زبانه سرِ عام ليکي او وائي چه "حُضُور (صَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم) زمونږه په شان بشر دې." (معاذالله)

مونږه اهل سنت و جماعت خو بس دومره پوهيږو چه

ـــہ وہ خدا نہیں بخدا نہیں، وہ مگر خدا سے جدا نہیں
وہ ہیں کیا مگر وہ ہیں کیا نہیں، یہ محبِّ حبیب کی بات ہے

**ترجمه:** قَسم په خدائے! هغه خدائے نه دې، خو د خدائے نه جدا هُم نه دې، هغوئي څه څه صِفات لري، په دې باندې الله او د هغه حبيب پوهيږي.

ـــہ تم ذاتِ خدا سے نہ جدا ہو نہ خدا ہو
اللہ ہی کو معلوم ہے کیا جانئے کیا ہو

**ترجمه:** تاسو د خدائے د ذات نه نه جدا ئې او نه خدائے ئې، ستاسو په صِفاتو يو الله تَعَالٰى پوهيږي.

ـــہ تیرے تو وصف عیب تناہی سے ہیں بَری
حیراں ہوں میرے شاہ میں کیا کیا کہوں تجھے

**ترجمه:** ستاسو صفات د عيبو نه بالکل پاك دې، زه حيران يم اے زما آقا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چه تاسو په کومو کومو صفاتو ياد کړم.

ـــہ اللہ کی سر تا بہ قدم شان ہیں یہ ان سا نہیں انسان وہ انسان ہیں یہ
قرآن تو ایمان بتاتا ہے انہیں ایمان کہتا ہے مری جان ہیں یہ

**ترجمه:** (۱) د هغوئي (صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم) ټول بدن مبارك د الله شان دې، هغوئي داسې انسان دې چه داسې بل انسان نشته (۲) قرآن خو هغوئي ته ايمان وائي، او ايمان وائي چه هغوئي (ﷺ) خو زما اصل دې.

ـــہ لَا يُمكِنُ الثَّنَاءُ كَمَا كَانَ حقُّه بعد از خدا بزرگ توئی قصّہ مختصر

**ترجمه:** څنګه چه د هغوئي د صِفاتو بيانولو حق دې هغسې نه شو بيانولې، خو مختصر دا چه د خدائے نه پس هُم د هغوئي مرتبه ده.

د علمائے حق اَهلِسُنَّت کارنامې دا ړانده او کوږ سترګي چرته وِيني، مشهور فارسي شعر دې ـــہ

گر نہ بیند بروز شپرہ چشم چشمۂ آفتاب را چہ گناہ

(**ترجمه:** که ښاپيرك د ورځې رنړا نه ويني نو په دې کښ د نمر څه قصور دې)

ما سره که د خپلو قدردانو استاذانو او مشائخو برکتونه ملګري نه وې نو کيدې شي چه ما به هم د ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو د مکتبۀ فِکر د خلقو په شان د خپلې ژبې او قلم بيهوده استعمال کولې خو د الله تعالٰى بے پناه شکر او احسان دې چه هغه زه ګنهګار د دې بد حَرکت نه بچ ساتلې يم. زما دُعا ده چه الله تَعَالٰى دِ ما ته په اِيمان او اخلاقو کښ د اوچتې درَجې پاکې را عطا کړي، آمين.

د انګريزانو او هندوانو ساتلي دا ديوبنديان وهابيان تبليغيان، د يوې مُشرکې ښځې اندراګاندهي صِفَت او ستائنه کولې شي. د الله تَعَالٰى هر دُښمن د دوئي ډير خوښ دې او د الله تَعَالٰى د هر ګران بنده سره د دوئي فطري دُښمنی ده. دا خپل خپل نصيب دې، مونږ خو د خپل خالق

او مالك شكر ادا كوو چه هغه مونږ ته خپل او د خپلو ګرانو بندګانو محبت را نصیب كړې دې. بیشكه دا معمولي نعمت نه دې، دا صرف د الله كرم دې. كه مونږه ټول عُمر هر ساعت شكر ادا كوو نو هم حق نه شو ادا كولې. د الله تعالٰی نه دُعا ده هغه د خپلو ګرانو بندګانو په محبت كښې مونږه ژوندي ساتي او د خپلو ګرانو بندګانو د ناموس د حفاظت د پاره زمونږه خدمتونه قبول كړي او مونږه په ورځ د قیامت د خپلو ګرانو بندګانو په غلامۍ كښې راپاڅوي. آمین.

الله كریم انسان ته عقلِ سلیم وركړې دې. دا عقل د سوچ او پوهې د پاره دې. هر ایمان والا ته معلومه ده چه "صحابي" هغه كس ته وائي چا چه په خپل دُنیاوی ژوند كښې د ایمان سره د حضُور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د صُحبت شرف حاصل كړې وي،اوهُم په ایمان باندېدهغه كس خاتِمه شوي وي. او د دې زیارت [یعني لیدلو] فائده دا ده چه یو غیرِ صحابی هُم د خپل هر كمال باوجود د صحابی مرتبې ته نه شي رسیدې. ښكاره خبره ده چه د كوم نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ صرف د لیدلو په وجه دا مرتبه حاصلیږي نو بڅپله به د هغه نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ خپل مقام او مرتبه څومره وي، خو په دې خبره دا د عقل ړانده نه پوهیږي، ځكه چه د دوئي سره دِین پاتې نه شو نو عقل به پكښې د كوم ځائ نه راشي.

ـ خدا جب دین لیتا ہے حماقت آہی جاتی ہے

**ترجمه:** خدائ پاك چه كله د چا نه دِین واخلي نو هغه بیوقوفه شي.

الله تعالیٰ دِ مونږه د ټولو بې ادبه خلقو د بې ادبئ نه، د هر بدعقیده د بدې عقیدې نه او د هغوئي د شر نه په خپله پناه کښې اوساتې. آمین

دا خادم اَهلِسُنَّت د دې لیکه پورې دوه ځله جنوبي افریقې ته تلې دې، ما ته دوستانو هلته د "جوہانس برگ سے بریلی" د پمفلټ درې حصې راکړې، چه هغه د "کونسل فار دی پروپ گیشن آف دی سُنَّت آف اِسلام" (The Council for the propagation of the Sunnats of Islam) پی. او بکس749، لې نیزیا، 1820، جوہانس برگ (جنوبي افریقا) د طرف نه چاپ شوې وې. په دې کتابچو د لیکونکي نوم نه دې لیکل شوې. البته په آخرئ صفحه باندې یو نوم "سلیمان قاسم"لیك دې. معلومه نه ده چه دا چا لیکلې دې.1 بیا هم د کتابچو په وړومبني مخ باندې دا لیك وو چه "دا کتابچې د بریلویانو د شائع شوي پمفلټ په جواب کښې لیکل شوي دي ځکه چه د بریلویانو په پمفلټ کښې د علمائے دیوبند عقائد غلط بیان کړې شوي دي." ما درې واړه پمفلټې اوکتلې او په سوچ کښې پریوتم چه ځان ته علمائے حق وئیونکي دیوبندیان وهابیان تبلیغیان، د الله تعالیٰ نه بالکل نه یَریږی او نه ورسره د خپل آخِرت فِکر شته، ګنې د دوئي به دا طریقه نه وه.

---

1 د "جوہانس برگ سے بریلی" کتابچو لیکونکي به یقیناً څوك دیوبندی وهابی (تش په نوم) عالم وي خو د هغه په خپل لیك یعنی عقائدو باندې یقین او اِعتماد نشته دې، په دې وجه د رسوائي د یَرې نه ئې خپل نوم نه دې لیکلې، څوك منافق به وي او هغه خیل اصل مخ پټ ساتل غواړي.

دلته زما دا اعتراف کول ضروري دي چه د کومې کتابچې په جواب کښې "جوہانس برگ سے بریلی" کتابچې لیکلې شوي وې، د سُنّیانو بریلویانو هغه کتابچه زما د نظر نه نه ده تیره شوي، بیا هم د "جوہانس برگ سے بریلی" کتابچو د مندرجاتو لوستلو نه پس د سُنیانو بریلویانو د هغه کتابچې د مطالعې څه خاص ضرورت پاتې نه شو، ځکه چه د شلو کالو نه زیات وخت اوشو چه د دیوبند "ځان ته علمائے حق وئیونکو" د انداز، تحریر او تقریر نه زه ډیر ښه خبر یم. د کومو خلقو د نظر نه چه د "جوہانس برگ سے بریلی" کتابچې تیرې شوي دي، هغه دِ د دې کتابچو د مصنف وَینا او انداز پخپله اوګوري چه هغه په کومو خبرو د اعلیٰ حضرت مجدِّد دِین و ملت، امام اَهلِسُنَّت مولانا شاه احمد رضا خان بریلوی رَحمَۃُاللہِتعالیٰعَلَیْہ خلاف خپله قلمي ژبه ککړه کړې ده نو دې ته به د دیوبندیانو بد قسمتي اووائیو چه هغه خبرې پخپله ځان ته عُلَمائے حق وئیوونکو دیوبندیانو د قلم نه د دیوبندیانو وهابیانو خلاف، د هغوئي په تحریرونو کښې موجود دي. فرق صرف دا دې چه که هُم هغه خبره امامِ اَهلِسُنَّت بریلوی رَحمَۃُاللہِتَعَالیٰعَلَیْہ اوکړي نو هغوئي ته کنزلې کیږي او که هُم هغه خبره علمائے دیوبند اوکړي نو د دیوبندیانو نه عدل و انصاف هیر شي. هغوئي که خپل مشران ملایان واقعي "علمائے حق" ګنړي نو د هغوئي دواړه تحریرونه دِ مخې ته کیږدي

او د عدل و انصاف تقاضې دِ پوره کړي او په دیانت دارئ دِ فیصله اوکړي، آخر [دوئي په دې باره کښ] د خپلو مشرانو فتوې ولې نه مني؟

که اوغواړم نو د لوستونکو په وړاندې هُغه ټول عبارتونه هم وړاندې کولې شم چه د هغې نه د دیوبند د اَکابِرو علماؤ کتابونه ډك دي، خو د هغه ټولو غلیظو [یعني ګنده] عبارتونو نقل کول زما غیرتِ ایماني نه شي برداشت کولې.1 لوستونکي به سوچ کوي چه هغه به څنګه عبارتونه وي؟ تاسو به د "پورنو ګرافی" اصطلاح اوریدلي وي خو ځان ته په خپله خُله د دین او مذهب ټیکداران وئیلو والؤ دیوبندیانو وهابیانو علماؤ د تحریرونو په مقابَله کښ د پورنو ګرافی لفظ هُم سپك معلومیږي.

**محترمو لوستونکو!** زما مقصد د چا زړه ازارول یا دروغ بیانول نه دي. (الله تعالیٰ دِ ما د هرې ګناه نه محفوظ اوساتی.) زه رښتیا وائم چه دا د غنمو په دوکه کښ وربشې خرڅولو والا (دیوبندیان وهابیان تبلیغیان) د دِین د تبلیغ په دوکه کښ څه څه لیکي او وائي هغه د شرم او پیغور باعث دي. عجیبه خبره ده چه هغوئي ته د غلطو جملو وضاحت کول خو ښه ښکاري خو غلط ته غلط وئیل نه برداشت کوي.

**محترمو لوستونکو!** هر عقل مند او پوهه، او شعور لرونکې کس

1 البته یو څو عبارتونه د دې کتاب په آخره کښ د دعوتِ فِکر د پاره مجبوراً شامل کړې شوي دي.

په دې خبره پوهيږي چه کنزلې بهرحال کنزلې دي. که هر څومره وضاحتونه اوکړې شي خو کنزلې څوك نيکې دُعا ګانې نه شي ثابتولې. مونږه هم ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو ته دا وائيو چه د دوئي د مشرانو علماؤ چه کوم کفريه او نازيبا عبارتونه دي، چه دوئي تر څو د خپلو علماؤ د فتوو مطابق کفريه او غلط اُونه مني او د دې عبارتونو د وئيلو او قبلولو نه انکار اُونکړي تر هغې به جګړه برقراره پاتې وي.

مشهور مثال دې چه د يو کلي يو څو کسان يو عالِم دين له لاړل او ورته ئې اُووئيل چه زمونږ په کلي کښې د اوبو کوهې دې، په هغې کښې سپې لويدلې او مړ شوې دې. تاسو اووائې چه د دې اوبو د پاك کولو څه صورت دې؟ عالِم دين اووئيل چه دومره بوقې اوبه د کوهي نه رااوباسئ، اوبه به پاکې شي. هغه د کلي کسان لاړل او هغه هُمره بوقې اوبه ئې را اوويستلې خو په اوبو کښې بدبوئ هُم هغه شان وه. هغوئي بيا عالِم دين له لاړل او قِصّه ئې ورته واوروله. عالِم دين ترې تپوس اوکړو چه تاسو مخکښې سپې راويستلې وو او که سپې په کوهي کښې وو؟ هغوئي اووئيل چه مونږه سپې نه دې راويستلې. عالِم دين ورته اووئيل چه ترڅو پورې مو د کوهي نه سپې نه وي راويستلې د هُغه وخته پورې چه هر څومره اوبه را اوباسئ ، بدبوئ به برقراره وي. اوّل سپې د کوهې نه را اوباسئ بيا په هُغه مقدار اوبه را اوباسئ، بيا ګورئ چه بدبوئ لرې کيږي که نه!

**محترمو لوستونکو!** څه دغسې مُعامَله د دیوبندي وهابي تبلیغي ډلې ده. ترڅو پورې چه دا خلق د جګړې اصل وجه ختمه نه کړي، غلط او کفریه عبارتونو وئیلو او قبلولو نه انکار اونکړي نو که هر څومره وضاحتونه اوکړي، جګړه به هغه شان برقراره وي.

اوس لږ دا اوګورئ چه دروغ وئیل، د دروغو نه کار اخستل، د حقیقت نه سترګې پټول او د نورو په سترګو کښې د خاورو اچولو بد کوشش کول د دوئي عادت دې. غالباً د دوئي خیال دې چه په دُنیا کښې باقي ټول ړانده او کاڼه اوسیږي.لږ د دوئي د دروغو یو څو مثالونه اوګورئ او پخپله فیصله اوکړئ چه دا دیوبندیان وهابیان څومره دروغژن دي.

د "*جوہانس برگ سے بریلی*" پارټ۱ صفحه۲ کښې دي چه "د علمائے دیوبند د محمد بن عبدالوهاب نجدی (د وهابی ډلې د امام) سره هیڅ تعلق نشته. د هغه د مشن سره د هغوئي هیڅ کار نشته، نه هغه د دوئي روحاني قائد دې، نه د دوئي د هغه سره ملاقات شوې دې بلکه علمائے دیوبند، د اهلِ سنت وجماعت او حنفی مذهب سره تعلق لري."[1]

[یعني] په دې عبارت کښې د علمائے دیوبند د پاره دا ثابت کړې شوي دي چه هغوئي وهابیان نه دي او د امام الوهابیه محمد بن عبدالوهاب نجدی سره د هغوئي هیڅ تعلق نشته. د دې جواب پخپله د علمائے دیوبند

---

1 یعنی د دوئي په نِزد دا هم تسلیم شوي خبره ده چه "وهابی" هغه ته وائي څوك چه د ابنِ عبدالوهاب سره په څه طریقه تعلق لري یا د هغه ملګرې او مقلد وي.

د تحریرونو نه حاضر دي. اوګورئ:

د مشهور دیوبندی مناظر محمد منظور نعمانی کتاب ''شیخ محمد بن عبدالوہاب اور ہندوستان کے علمائے حق'' (مطبوعه قدیمی کتب خانه، آرام باغ، کراچی ۱۹۷۸ء) د چاپ ئې د لسو کالو نه زیات شوي دي، په دې کتاب باندې د شیخ محمد زکریا کاندهلوی او قاری محمد طَیّب صاحب تصدیق او توثیق هم شته دې او په دې کتاب کښ ثابت کړې شوي دي چه د شیخ محمد بن عبدالوهاب نجدی او علمائے دیوبند په مینځ کښ هیڅ نظریاتي اختلاف وغیره نشته بلکه نجدی وهابی او دیوبندی یو دي. د نعمانی صاحب په دې کتاب باندې زه په دې خپل تحریر کښ هیڅ تبصره نه کووم، زما مقصد د ''جوہانس برگ سے بریلی'' د مصنف دروغ خپلو لوستونکو ته ښکاره کول دي چه لوستونکي ئې اوپیژني چه د ''جوہانس برگ سے بریلی'' مصنف دروغ څومره خوښوي. د دوئي علماء او مشران پخپله ځان د وهابی ثابتولو د پاره لګیا دي هر ممکن کوشش کوي او د ''جوہانس برگ سے بریلی'' مصنف په جنوبی افریقا کښ د دروغو وئیلو او لیکلو نه نه اوزګاریږي. محترمو لوستونکو، د اکابر دیوبند نور یو څو تحریرونه اوګورئ:

''د دې لقب (وهابی) معنٰی دا ده چه کوم کس په مسلك کښ د ابنِ عبدالوهاب تابع یا موافق وي.'' (امداد الفتاوٰی ج۵، ص ۲۳۳، مطبوعه تهانه بهون)

د دیوبندیانو امام جناب رشید احمد گنگوهی فرمائي: د "محمد بن عبدالوهاب (نجدی) مقتدیانو ته وهابیان وائي، د هغه عقائد ښه وو او د هغه مذهب حنبلی وو. البته د هغه په مزاج کښې سختي وه خو هغه او د هغه مقتدیان ښه دي." (فتاوٰی رشیدیه، ج۱، ص۱۱۱، مطبوعه کتب خانه رحیمیه، دهلی ۱۳۶۳ھ، تالیفاتِ رشیدیه، ص ۲۴۲، مطبوعه اداره اسلامیات، لاهور)

**محترمو لوستونکو!** د ابن عبدالوهاب نجدی متعلق د گنگوهی فتوٰی تاسو اوکتله.اوس پخپله د علمائے دیوبند خپل عبارتونه دابن عبدالوهاب نجدی متعلق اوگورئ او فیصله اوکړئ چه څوك رښتیني دي او څوك دروغژن دي؟

د علمائے دیوبند د عقائدو کتاب "اَلْمُهَنَّد" (مطبوعه کتب خانه اعزازیه، دیوبند) صفحه ۱۸ کښې دي:

**دولسم سوال:** محمد بن عبدالوهاب نجدی به د مسلمانانو وینه توئیول او د هغوئي مال او عزت حلال گنړل، او ټول خلق ئې مُشرکان گنړل او د اسلافو په شان کښې به ئې گستاخی کوله. د هغه په باره کښې ستاسو څه رائے ده او آیا د اسلافو او اَهلِ قِبله کافر کیدل تاسو جائز گنړئ، یا څه مشرب مو دې؟

**جواب:** زمونږ په نِزد د هغه حکم هم هغه دې کوم چه صاحبِ دُرِّمختار فرمائیلې دې او (ابن عبدالوهاب او د هغه منونکي) د خوارجو یوه طاقتوره ډله ده چا چه د تاوِیل په ذریعه په امام باندې حمله کړي

وه چه امام [پیروي کوونکي] ئې باطل یعنی د کفر یا د داسې نافرمانۍ مرتکب ګنړل چه هغه قتال [یعني جنګ] واجب کوي. د هغه تاویل په وجه دا خلق زمونږه مرګ او مال حلال ګنړي او زمونږه زنانه قید کوي. (مخکښ فرمائي) د دوئي حکم د باغیانو دې. (بیا ئې دا هم فرمائیلي دي چه) مونږه د هغوئي تکفیر په دې وجه نه کوو چه دا فِعل د تاویل په وجه دې اګرچه باطل دي، او علامه **شامی** د دې په حاشیه کښې فرمائیلي دي څنګه چه زمونږ په زمانه کښې د عبدالوهاب تابعدارانو اوکړل چه د نجد نه را اُووتل او په حرمین شریفین باندې غالب شو، ځان ته حنبلی مذهب والا وئیل خو د هغوئي عقیده دا وه چه بس صرف هغوئي مسلمانان دي او څوك چه د هغوئ د عقیدې خلاف وي هغه مشرکان دي او په دې وجه هغوئي د اَهلِ سُنَّت او علمائے اَهلِ سُنَّت قتل مباح ګنړلو تر دې چه الله تَعَالیٰ د هغوئي زور مات کړو.“

د فتاوٰی رشیدیه په عبارت کښې دي چه ”د هغوئي عقائد ښه وو“ او د اَلْمُهَنَّد په عبارت کښې دي چه ”د هغوئي عقیده دا وه چه بس صرف هغوئي مسلمانان دي او څوك چه د هغوئي د عقیدې خلاف وي، هغوئي مشرکان دي. او د هغوئي د عقیدې خلاف اَهلِسُنَّت وو په دې وجه د هغوئي په نِزد د اَهلِسُنَّت او د علمائے اَهلِسُنَّت قتل مُباح وو.“ نو نتیجه دا شوه چه د ګنګوهی صاحب په نِزد ټول اَهلِسُنَّت مشرك ګنړل او د هغوئي قتل جائز او حلال ګنړل، دا ښه عقیده ده.

او ګنګوهی صاحب دا هُم وائي چه ''هغه او د هغه مقتديان ښه دي''
او نور ټول علمائے ديوبند وائي چه ''هغه خارجي او باغي وو''
معلومه شوه چه د ګنګوهی صاحب په نِزد خارجي او باغي ښه وي.

نور اوګورئ: حسين احمد مدنی، صدر مدرس دارالعلوم ديوبند، فرمائي: ''ملګرو! محمد بن عبدالوهاب نجدی د دريارلسمې صدئ په شروع کښ په نجد عرب کښ ظاهر شو. او ځکه چه باطل خيالات او فاسد عقائد ئې لرل، په دې وجه ئې د اَهلِسُنَّت وجَماعت سره قتال او جنګ کولو، هغوئي ته به ئې [د طاقت] په زور د خپلو خيالاتو [مسلط کولو] تکليف ورکولو، د هغوئي مالونه به ئې مالِ غنيمت او حلال ګنړلو، د هغوئي قتل به ئې د ثواب سبب او رحمت ګنړلو. خاص طور اهلِ حرمين او عام طور اهلِ حجاز ته ئې ډير تکليفونه ورکړي وو، د سَلَف صالحينو او تابعينو په شان کښ ئې د ډيرې ګستاخئ او بې ادبئ الفاظ استعمال کړي وو، ډيرو خلقو د هغه سخت تکليفونو په وجه مدينه مُنَوَّره او مکه مُعَظَّمَه پريښودله. او په زرګاؤ خلق د هغه او د هغه د فوج د لاسه شهيدان شوي وو. الحاصل هغه يو ظالم، باغی، قاتل، او فاسق سړې وو.''

اوس که ګنګوهي صاحب رښتينې وي نو حسين احمد مدَنی دروغژن کيږی او که حسين احمد مدَنی رښتينې وي نو ګنګوهی دروغژن جوړيږی، فيصله دِ د دې دواړو منونکي اوکړي.

ګنګوهی صاحب وائي چه د هغوئي (یعني د نجدیانو) عقائد ښه وو.
خومره ښه وو؟ د دې بیان د دیوبند د صدر مدرس جناب حسین احمد مدنی د تحریر نه ملاحظه کړئ، هغوئی سلسله وار د نموني په طور د دې نجدیانو یو څو عقیدې په خپل کتاب ”اَلشَّهَابُ الثَّاقِب“ (مطبوعه کتب خانه، راشد کمپنی، دیوبند) کښې په تفصیل سره لیکلي دي، هغه اوګورئ:

(۱) ”د محمد بن عبدالوهاب عقیده دا وه چه ټول اهلِ عالَم او د مسلمانانو ټول ملکونه، مشرکان او کافر دي، او د هغوئي سره جنګ کول، د هغوئي مالونه د هغوئي نه په زور اخستل حلال او جائز بلکه واجب دي.“ (الشهاب الثاقب، ص ۴۳)

(۲) ”د نجدی او د هغه د منونکو تر اوسه پورې دا عقیده ده چه د انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَام ژوند صرف د هغه زماني پورې وو ترڅو پورې چه هغوئي په دُنیا کښې وو، د هغې نه پس هغوئي او نور مومِنان په مرګ کښې برابر دي.“ (ص ۴۵)

(۳) ”د زیارتِ رسولِ مقبول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ او په آستانه شریف حاضری کول او د روضۀ مُطَهَّره لیدلو [د پاره حاضریدو] ته دا ډله بدعت حرام وغیره وائي، د نبـی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ [د روضې مبارکې] طرف ته په دې نیت سفر کول منع او ناجائزه ګڼړی. لا تشد الرحال الا اِلٰی ثلاثة مساجد، د دوئي استدلال دې، په هغوئي کښې څیني [د روضې

مبارکې د] زیارت [د پاره] سفر معاذَالله، د زنا درَجې ته رسوي.“ (ص۴۵)

(۴) ”د نَبُوَّت او د حُضور رِسالت مآب علیٰ صاحبِہَا الصّلوٰۃُ والسّلام په شان کښې وهابیان ډیرې د ګستاخۍ خبرې کوي او خپل ځان د سرورِ کائنات صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ سره برابر خیال کوي او ډیر کم فضیلت د تبلیغ د زمانې منی..... د دوئي خیال دې چه د رَسُولِ مقبول صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ څه حق اوس په مونږه نشته او نه څه احسان، او د وفات نه پس د هغوئي د ذاتِ پاك نه فائده نشته. او په دې وجه د هغوئي د ذاتِ پاك په دُعا کښې وسیله کول د وفات نه پس ناجائز دي. او د دوئي د مشرانو قول دې: معاذَالله، معاذَالله، معاذَالله، نَقْلِ کُفر کُفر نه بَاشَد [یعنی د کفر نقل کول کفر نه دې] چه زمونږ د لاس همسا د ذاتِ سرورِ کائنات عَلَیْهِ السَّلام نه مونږ ته زیاته فائده راکوي، مونږه د دې په ذریعه سپې شړلې شو او د ذاتِ فخرِ عالَم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ نه خو دا هم نه شي کیدې.“ (ص ۴۷)

(۵) ”وهابیان د اشغالِ باطنی، اعمال صوفیه، د ذِکر او فکر مراقبه، ارادت، مشیخیت، د شیخ سره د زړه رابطه ساتل، فنا او بقا وغیره اعمالو ته فضول لغو، بدعت او ګمراهی وائي.“ (ص ۵۹)

(۶) ”وهابیان د یو خاص امام تقلید کولو ته شرك فِي الرسالة وائي او د څلورو واړو امامانو او د هغوئي د مقلدینو په شان کښې بد او خبیث الفاظ استعمالوي، او په دې وجه په مسائلو کښې هغه ډله د اَهلِسُنَّت و جَماعت مخالف شوه، چنانچه د هندوستان غیر مقلدین د هُم دې بد

مذهبې ډلې پیروکار [یعني تقلید کوونکي] دي. د نجد وهابیان اګرچه د اظهار په وخت کښې دعوی د حنبلي کیدو اقرار کوي، خو عمل درآمد د هغوئي هیڅ کله په ټولو مسائلو کښې د امام احمد بن حنبل رَحمَۃُاللّٰہِتعالیٰعَلَیہ په مذهب نه دې.'' (ص٦٢، ٦٣)

(٧) مثلاً ''اَلرَّحۡمٰنُ عَلَی الۡعَرۡشِ اسۡتَوٰی. وغیره آیتونو کښې د وهابیانو ډله اِستواءِ ظاهری او جهت [یعني طرف] وغیره ثابتوي چه د هغې نه د جسمیت ثبوت وغیره لازمیږي.'' [یعني د الله جسم ثابتوی] (ص ٦٤)

(٨) ''د عربو د وهابیانو نه ډیر ځله اوریدل شوي دي چه هغوئي د اَلصَّلٰوۃُ وَ السَّلَامُ عَلَیۡكَ یَارَسُوۡلَ الله نه سخت منع کوي او په اهلِ حرمین باندې د دې نِدا او خطاب په وجه سخته ملامتیا وائي او په هغوئي پورې خندا او ټوقې کوي او بدې خبرې کوي.'' (ص ٦٥)

(٩) ''وهابیان په شاهِ خیرُ الانام عَلَیۡہِ السَّلام باندې دُرود و سلام په کثرت سره وئیل او دلائلُ الخیرات، قصیده برده، قصیده همزیه وغیره ته او د دې [قصیدو] لوستلو او استعمالولو او وظیفه جوړلو ته سخت قبیح او مکروه وائي او د قصیده بُرده ځینې اشعارو ته د شرك وغیره نسبت کوي. مثلاً یَا اَکۡرَمَ الۡخَلۡقِ مَالِیۡ مَنۡ اَلُوۡذُ بِهٖ سِوَاكَ عِنۡدَ حُلُوۡلِ الۡحَادِثِ الۡعَمَمِ

اے په مخلوقاتو کښې افضله! زما څوك نشته چه پناه ترې اوغواړم، سِوا ستاسو نه د مصبتونو راتلو په وخت کښې.'' (ص٦٦)

(١٠) ''وهابیان د احکامِ شرائع د علم نه سواء د ټولو علومو نه د سرورِ

كائنات خاتَمُ النَّبِيِّين عَلَيۡهِ الصَّلٰوۃُ وَالسَّلَام ذات مبارك خالي ګنړی.“ (ص ٦٧)

(١١) ”وهابيان د حُضُور سرورِ كائنات عَلَيۡهِ الصَّلٰوۃُ وَالسَّلَام د ولادت [يعني د پيدائش] ذِكر ته قبيح او بدعت وائي.“ (ص ٦٧)

**محترم لوستونكو!** د اِبن عبدالوهاب نجدى او د هغه د منونكو دا يوولس عقيدې مې د نمونې په طور وړاندې كړې. دا ټچپله د ديوبند صدر مدرس حسين احمد مدنى ليكلې دي كومې چه د ګنګوهی صاحب په نِزد ښې عقيدې دي. معلومه شوه چه ډير زيات ګنده خبيث او كُفريه عقيدې د هغه [يعنى د ګنګوهی] په نِزد ښې دي او پاكيزه او اسلامي عقيدې د هغه په نِزد كفر او شرك او بدعات دي. ـــه

خرد كا نام جنوں ركھ ديا جنوں كا خِرد
جو چاہے آپ كا حسن كرشمہ ساز كرے

**ترجمه:** د عقل نوم ئې ليونتوب كيښودو او د ليونتوب نوم ئې عقل كيښودو، ستا كرشمه ساز حُسن چه څه غواړی كوي دِ ئې.

د ديوبنديانو د وهابي كيدو نور اعتراف اوګورئ: په اشرفُ السوانح، ج١، ص٤٥ (مطبوعه اداره تاليفات اشرفيه، ملتان 1985ء) كښې دي: ”په كومو ورځو كښې چه اشرفعلى تهانوى صاحب په مدرسه جامع العلوم كان پور كښې مُدَرِّس وو، د هُغه ورځو واقعه ده چه د مدرسې د ګاونډ نه يو څو زنانؤ شيرينى راوړه چه كلامِ پاك پرې اولولى او اِيصالِ ثواب ئې كړي. د مدرسې طلباؤ ايصالِ ثواب [يعني فاتِحه او دُعا] اُونكړه او

متهائي ئې دغسې اوخوړله. په دې خبره ښه شور جوړ شو. تهانوی صاحب چه د شور نه خبر شو نو هغه راغې او په اوچت آواز ئې اووئیل: "وروره! دلته "وهابیان" اوسیږي، دلته د فاتِحه او نیاز د پاره څه مه راوړئ."

په سوانح محمد یوسف کاندهلوی، ص۲۰۲ مطبوعه ندوة العلماء لکهنؤ کښې دي: "مونږه ډیر سخت وهابیان یو."

د دیوبندیانو د تبلیغي ډلې مشر شیخ محمد زکریا صاحب فرمائي: "زه پخپله ستا نه غټ وهابی یم." (سوانح محمد یوسف کاندهلوی، ص۲۰٤، مصنف محمد ثانی حسنی و منظور نعمانی)

(د محترمو لوستونکو د توَجُّه د پاره عرض دې، څنګه چه تاسو اولوستل چه د مدرسه دیوبند صدر مُدَرِّس جناب حسین احمد مدنی وهابیانو ته "طائفه شنیعه او خبیثه" (د بدو او پلیدو او ګندؤ خلقو ډله) او ګستاخ لیکلي دي او جناب اشرفعلي تهانوی او شیخ محمد زکریا وغیره ځان ته په ډیر فخر سره وهابی لیکي، لوستونکي به پخپله د دوئي د اعتراف نه د دوئي د اصل او حقیقت ښه اندازه اوکړی)

د دیوبندیانو حکیم الامت تهانوی، د دیوبندیانو د امام رشید احمد ګنګوهی په نوم خپل خط کښې لیکی: "اوس هم دلته ځینې علماء ما ته وهابی وائي او ځینی د بَهر علماء هم دلته راغلي دي او خلق ئې پوهه کړې دي چه دا کس (تهانوی) وهابی دې د ده په دوکه کښې مه راځئ، خو ولې چه په څه وجهو مې د عوامو سره عملي موافقت وو څکه د چا خبره اُونه چلیده، او ولې چه اوس مې د عملی شریك کیدو

هم اراده نشته نو تکلیفونه به ضرور پیښیږي.“ تهانوی د میلاد په جلسو کښې په منافقت یا تقیه کولو شریك کیدو نو عامو خلقو د هغه وهابی کیدل اُونه منل خو بڅپله تهانوی وائي چه اوس به د میلاد جلسو ته نه ځم نو دا خبره به ښځه شي چه ”دا کس خو وهابی دې تر اوسه پورې پټ وو.“ (تذکرة الرشید، ج۱، ص۱۳۵، مطبوعه اداره اسلامیات، لاهور)

جناب ابوالحسن علی ندوی په خپل کتاب ”دینی دعوت“ کښې د تبلیغی جماعت د بانی محمد الیاس متعلق دا واقعه نقل کوي چه په ۱۹۳۸ء کښې کله چه هغه د حج په موقع حجاز ته تلې وو نو د تبلیغی جماعت په سلسله کښې هغه د خپل وفد سره د سلطانِ نجد سره ملاقات کړې وو. د سلطان سره د ملاقات په سلسله کښې د تیارو ذِکر کولو کښې لیکی:

”اوتاکلې شو چه وړومبې دِ اغراض او مقاصد په عربئ کښې اولیکل شي، بیا دِ سلطان ته وړاندې کړې شي. مولانا احتشام الحق د عبدالله بن حسن شیخ الاسلام او شیخ بن بلیهَد سره په خپله ملاقات اوکړو. دوه هفتې پس (په ۱٤ مارچ ۱۹۳۸ء) مولانا (محمد الیاس)، د حاجی عبدالله دهلوی، عبدالرحمان مظهر شیخ المُطَوِّفین او د مولوی احتشام الحسن په ملګرتیا کښې د سلطان د ملاقات د پاره لاړل. جلالة المَلِك ډیر په اعزاز سره د مسند نه راکوز شو او استقبال ئې اوکړو او ځان ته نِزدې ئې هندی مسلمانان کښینول.

دې حضراتو د تبلیغ عرض پیش کړو چه په هغې باندې سلطان تقریباً د څلویښت منټه پورې د توحید او قرآن و سنت او په اتباع شریعت باندې اوګد تقریر اوکړو، د دې نه پس په ډیر اعزاز سره د مسند نه کوز شو او رخصت ئې کړل. په صبا له سلطان د نجد اراده اوکړه او ریاض ته روان شو."

(محمد الیاس اور دینی دعوت، ص ۹۷، ۹۸، مطبوعه مجلس نشریات اسلام، کراچی)

د سلطانِ نجد نه د خوشحالئ پیغام حاصلولو نه پس اوس د ضابطې کاروائي اوګورئ. لیکی:

"احتشام الحسن د تبلیغ مقاصد مختصر اولیکل او شیخ الاسلام رئیسُ القضاة (چیف جسټس) عبد الله بن حسن (کوم چه د ابنِ عبد الوهاب په اولاد کښ دې) ته پیش کړل. مولانا (محمد الیاس) او مولوی احتشام د هغه خوا ته پخپله هم لاړل. هغه د دوئي ډیر اعزاز او اکرام اوکړو او د هرې خبرې ئې ښه تائید اوکړو او د زبانی همدردئ او امداد وعده ئې اوکړه." (دینی دعوت، ص ۹۸)

د انصاف د جذبې سره غور اوکړئ! د پوره کاروائې په بیان کښ دا هر کس ښکاره محسوسَولې شي چه سلطانِ نجد ته د پیش کولو د پاره د تبلیغی جماعت د اغراض و مقاصد کومه مسوده چه په عربئ کښ تیاره کړې شوې وه، د پوره کاروائې سره د هغې په نقل کولو کښ آخر کوم یو مصلحت رُکاوټ وو؟ خو که په زرګاؤ پردې پرې واچولې

شي نو هم دا حقيقت نه شي پټيدې چه د قصرِ حکومت د طرف نه د کومو اغراضو او مقاصدو ډير ډير تائيد شوې وو او د کومو خبرو چه د دعوت و تبليغ په سلسله کښې پوره پوره همدردي کړې شوي وه او د امداد وعدې ورکړې شوې، هغه بالکل هُم هغه وو په کومو مقاصدو پسې چه نجدي قوم راپاڅيدلې وو او د عشق و ايمان لازوال حُرمتونه او د اسلام ښکلې يادګارونه ئې په خاورو او وِينو کښې ګډ کړي وو. ځکه چه په دې خبره يو معمولی عقل لرونکې سړې هم ښه پوهيدې شي چه که هُغه اغراض او مقاصد د نجدی مذهب د مزاج نه معمولي هُم مختلف وې نو د نجدی حکومت شيخ الاسلام او قاضی القضاة (د چا په رګونو کښې چه د ابن عبد الوهاب نجدی وينه جاری وه، هغه) به هيڅ کله د امداد او مرستې وعده نه کولې.

د وهابی ډلې سره د تبليغی جماعت د فِکر او اعتقاد د يو کيدو او د دوارو په مينځ کښې د اعتماد او ملګرتيا د خپلولئ يو تازه ثبوت بل اوګورئ، د جناب محمد الياس د زمانې د قصې نه پس اوس د هغه د ځوئ محمد يوسف صاحب د خلافت د زمانې قِصّه واورئ.

د جناب ابو الحسن علی ندوی په سربراهئ کښې د دهلی نه نجد ته د روانيدو والا يو تبليغی وفد د سرګرمو په تذکِره کښې د محمد يوسف کاندهلوی سوانِح نګار په خپل کتاب کښې ليکي.(په رياض کښې د سعودی حکومت د مشرانو سره د ذِکر شوي وفد د مضبوطو تعلقاتو حال اولولئ):

”شيخ عمر بن الحسن آل شيخ كوم چه د شيخ محمد بن عبد الوهاب (نجدی) په اولاد كښې دې او قاضی القضاة او د شيخ الاسلام مملكت سعوديه شيخ عبد الله بن الحسن (د چا سره چه د محمد الياس وعده شوي وه) ورور دې او د رياض هَيْئَةُ الْاَمْرِ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْیِ عَنِ الْمُنْكَرِ مشر دې، د هغه د ولی عهد مملكت امير سعود سره ډير نِزدې تعلقات وو او د هغه خاص اعتمادي وو، د هغه سره [د محمد يوسف كاندهلوي] ښه تعلقات قائم شوي وو. كومو خلقو چه د (تبليغی) جماعت په باره كښې مختلف شكونه پيدا كول، د هغوئي د دې تعارُف او اعتماد په وجه شكونه پيدا كوونكي كامياب نه شو.“ (سوانح محمد يوسف، ص٤٣١، مطبوعه مجلس صحافت و نشريات دارالعلوم ندوة العلماء، لكهنؤ)

د دې نه پس د عقيدې يو والي ښكاره ثبوت اوګورئ. ليكی چه:

”د شيخ عمر بن الحسن مشر ورور شيخ عبد الله بن الحسن سره ئې ډير ځله ملاقات شوې وو (د چا سره چه د محمد الياس معاهده شوي وه) او هغه ورسره ډير د مهربانئ سلوك اوكړو. څه خلقو د (تبليغی) جماعت متعلق دا خبرې جوړي كړي وې چه دا (تبليغی) جماعت والا فاسدې عقيدې لري او دا شكايت به ئې علماؤ ته وړلو، [د محمد يوسف كاندهلوي] د علماؤ سره د تعلق او د با اثره خلقو سره ملاقات د شكايت رسوونكو اثر ختم كړو.“ (ص ٤٣١)

د نجد د قاضيانو او د نجدی علماؤ او حاكمانو په وړاندې به د

خپل بدعقيده کيدو د الزام صفائي دې خلقو څنګه وړاندې کړې وي؟ د دې د بيانولو ضرورت نشته، ځکه چه د مذهبي مزاج دا عادت دې چه يو بدعقيده سړې هم بل کس تر هُغه وخته پورې خوش عقيده نه ګڼړي ترڅو پورې چه د هغه په خيال کښې هغه [کس د هغه سره] په عقيده کښې يو شان ثابت شوې نه وي او په دې بيان کښې يوه دا نکته ډيره واضحه محسوسيدې شي لکه چه د نجدي قوم مشرانو چه دا [تبليغيان] د مخکښې نه پيژندل چه دا خلق بدعقيده نه دي، بلکه زمونږ د عقيدې والا دي ځکه خو د بدعقيدګئ د شکايت رسولو والا اثرات ختم شو.

د ديوبنديانو تبليغيانو د وهابي کيدو او د نجديانو وهابيانو سره د تعلق تائيد پخپله د هغوئی د قلم نه لوستونکو ته معلوم شو.

د دې برخلاف د پاکستان د پخواني صدر جنرل محمد ضياءُ الحق په مرګ باندې ځان ته حنفي وئيلو والا وهابي علمائے ديوبند په ښکاره ميدان د خپل مذهب خلاف عمل اوکړو او د جنازې غائبانه نمونځ ئې اوکړو او دُعا ئې هم اوکړه او د حضرت داتا ګنج بخش سَيِّدنا على هجويرى رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ په روضه مبارکه کښې ئې د صدرِ پاکستان د دريمې قرآن خوانى او فاتحه هُم اوکړه او د څلويښتمې په محفل کښې هُم شريك شو. (د تصويرونو او اخبارونو په ذريعه د تصديق د پاره زما رساله "اپنی ادا دیکھ" اوګورئ) صرف دا نه بلکه په پاکستان کښې علمائے ديوبند

د عید میلاد النبی (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ) په موقع جلوس اوباسی، جلسې کوي. په سرکاری او غیرسرکاری سطح باندې منعقد شوي محفلِ میلاد کښې شرکت کوي او هغوئی د حضرت ابوبکر صدیق رَضِیَ اللهُ تَعَالٰی عَنْهُ د عرس په موقع په خصوصی اهتمام سره جلوس ویستلې وو. د خلفائے راشدین او د نورو صحابؤ د عرس ورځې، دا خلق د تاریخ، ځائ او د مقام د تعیُّن او د مشهورتیا د هر یو اهتمام سره، هر کال نمانځي [یعني مناوهي] او په سرکاری او غیرسرکاری سطح باندې د دې د نمانځلو [یعني منوهلو] اپیل هُم کوي او د دوئي د مشرانو علماؤ د کلیزې د پاره باقاعده اشتهارونه چاپ کیږي. او د هغوئي د وفات په تاریخ د قرآن خوانئ او ایصالِ ثواب وغیره او د نیاز اهتمام هُم کیږی. دوه مشهورو دیوبندي عالمَانو د حضرت داتا گنج بخش رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَيْه مزارِ اقدس ته د غسل ورکولو په عمل کښې شرکت کړې وو او د غسل اوبه ئې تبرکاً [یعني د برکت د پاره] په خپلو مخونو اچولې وې. د حضرت امام حسین رَضِیَ اللهُ تَعَالٰی عَنْهُ د شهادت د ذِکر مجلسونه علمائے دیوبند پخپله کوي او د شیعه گانو په محفلونو کښې شرکت کوي، د اولیائے کرامو په قبرونو باندې خادرې غوړوي او د هغوئي د عُرس په محفلونو کښې شرکت هُم کوي. د دیوبندیانو وهابیانو سیاسی او مذهبی لیډر مفتی محمود صاحب د حضرت داتا گنج بخش رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَيْه په مزار باندې شال غوړولې وو او گلونه ئې هُم پرې اچولي وو، حلوه ئې هُم

تقسیم کړي وه، دا ټول کارونه که دیوبندیان علماء کوي نو د هغوئي خلاف فتوٰی نه ورکولې کیږي او که هُم دا کارونه سُنّي (بریلوی) اوکړي نو د علمائے دیوبند د طرف نه د شرك او بدعت او د حرام فتوې وریدل شروع شی. صرف دا نه نور هم واورئ، مشهور دیوبندی عالم احتشام الحق تهانوی صاحب چه څه کړي دي، لږ هغه هم اوګورئ.

آغاخاني (اسماعیلي ډله) بالاتفاق د اسلام نه وتلي ده. احتشام الحق تهانوی د آغاخان (سوئم) [د ایصالِ ثواب] د پاره قرآن خوانی او فاتحه کړي وه. دهغه د بخښنې دُعا ئې کړي وه او په تعزیتی اجتماع کښې شریك شوې وو او په تقریر کښې ئې آغاخان ته د اسلام مُحسِن وئیلې وو.1

څه فرمائي اوس د دیوبند وهابیان ځان ته علمائے حق وئیلو والا د خپل احتشام الحق تهانوی په باره کښې؟ سُنّي (بریلوی) که د حضرت سَیِّدُنا غوثِ اعظم رحمۃ اللہ تعالٰی علیہ د ایصالِ ثواب د پاره یوولسمه اوکړي نو هغه د شریعت خلاف قرار کیږی او دیوبندی مُلّا که د غیر مسلم [کافِر] د پاره قرآن خوانی اوکړی، د ایصالِ ثواب د پاره ئې فاتحه اولولی نو د هغه د پاره هیڅ فتوٰی نشته؟ که د دیوبند د دارالعلوم جشن کیږي نو په هندوې ښځې [اندارا گاندهي] د محفل

---

1 د پاکستان د وړو او لویو ټولو اخبارونو په حصّو باندې مشتمل زما چاپ شوي رساله "اپنی ادا دیکھ" کښې ثبوتونه کتلې شئ. د الله تعالٰی په فضل زما سره ټول ریکارډ موجود دې.

افتتاح کوي1 نو هيڅ فتوٰی نشته او که د الله تَعَالٰی د رسول صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ دُنيا ته د تشريف راوړلو جشن جوړ کړې شي، نو د شرك، بدعت او حرام فتوې لګولې کيږي.

آيا د ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو په نِزد هُم دا د حق معيار دې چه د هغوئي خپل خلق هُم هغه کارونه د غيرمسلمو د پاره هم اوکړي نو هغوئي بيا هُم مومِنان او علمائے حق ګنړلې شي او که صحيحُ العقيده سُنِّيان هُم هغه کارونه د شريعت او سُنَّت مطابق د اللّٰه تَعَالٰی د ګرانو بندګانو د پاره اوکړي، نو هغوئي ته مشرکان او بدعتيان وائي؟ د ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو دا عملي منافَقت او دين خرخول، د الله تعالٰی سره توقې نه دي نو نور څه دي؟

د "جوہانس برگ سے بریلی" د مُصَنِّف د خيانت او د دروغو يو بل ثبوت اوګورئ:

په پارټ۳، ص ٤٤ کښې د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف د خيانت، بدديانتئ او دروغو انتها کړې ده. بيشکه د دروغژن او ظالم د پاره د الله تَعَالٰی لعنت يقيني دې. د چا کلام ته غلط رنګ ورکولو او د هغه د مقصد نه خلاف بيانول په هغه باندې اِلزام لګول او بهتان

---

1 ياد ساتئ چه ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو، د هندوانو سره د خپل اتحاد د مظاهرې د پاره يو مشهور هندو ليډر د دهلي د جامع مسجد په منبر باندې د کښينولو جرأت هم کړې وو.

او حرام دي. په دې باره کښې به تاسو د دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د خپل مفتی محمد شفیع صاحب فتوٰی په راروانو صفحو کښې اوګورئ.

ځان ته ښځپله علمائے حق وئیلو والا دیوبندیان د دین غله دِ د قرآنِ پاك دا آیتونه یاد ساتی:

وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ الظّٰلِمُوْنَ ؕ (پ۱۳، ابراهیم:۴۲)

مفهوم ترجمه کنز الایمان: الله بې خبره مه ګڼړئ د ظالمَانو د کارونو نه.

وَسَيَعْلَمُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اَيَّ مُنْقَلَبٍ يَّنْقَلِبُوْنَ ﴿۲۲۷﴾ (پ۱۹، الشعرآء: ۲۲۷)

مفهوم ترجمه کنز الایمان: او اوس به پوهه شي ظالِمَان چه په کومه ړډه اوړي.

[یعني چا چه په حضورِ اکرم صَلَّی اللّٰہُ تَعَالٰی عَلَیْہِ وَاٰلِہٖ وَسَلَّم پورې سپکې وئیلي وې. یعني د مرګ نه پس به په کومه ړډه اوړي، او حضرتِ اِبنِ عبَّاس رَضِیَ اللّٰہُ تَعَالٰی عَنْہُمَا فرمائي چه د جهنَّم په طرف، او هغه ډیر بد د اوسیدو ځائ دې]

**محترمو لوستونکو!** د ماه نامه المِیزان (بمبئ) امام احمد رضا نمبر، د نن نه تقریباً پینځلس کاله مخکښې چاپ شوې وو. د دې چاپ کولو والا په دیباچه کښې د یو عنوان "*تہمتوں کے انبار*" نه لاندې چه کوم پوره پیراګراف لیکلې وو، د "*جوہانس برگ سے بریلی*" مصنف د هٰغه پیراګراف نه خپل ناپاکه مقصد پوره کولو د پاره مخکښې او وروسته عبارت پریښودو او یو څو جملې ئې نقل کړې او دا ئې اولیکل چه

اعلیٰ حضرت احمد رضاخان بریلوی ته خپل امام وئیلو والا خلقو خپله رائے اوکورئ.1

دا خادمِ اهلِ سُنَّت به اول د "المِیزان" د امام احمد رضا نمبر د دیباچې هغه پوره پیراګراف نقل کوي، د هغې نه پس به د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف چه د دې پیراګراف کومې جملې نقل کړي دي، هغه پیش کوي چه لوستونکي پوهه شي او دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو دیني ډاکوانو د خباثت اندازه اولګوی چه د هغوئي بنیاد په دروغو او بددیانتئ باندې قائِم دې، هغوئي نور خلق هم یقیناً د صراطِ مُستَقیم نه اِلٰـی جَحِیم [د نیغې لارې نه د دوزخ طرف] ته بوځي. الله پاك دِ مونږه د هغوئي د شر نه په حفاظت کښې اوساتی....

•••••••••

1 دا خادمِ اهلِ سنت خپلو لوستونکو ته عرض کوي چه که زما مؤقف اَلْحُبُّ لِلّٰهِ وَالْبُغْضُ لِلّٰه نه وې نو د "جوہانس برگ سے بریلی" د مصنف په طرز به مې د دیوبندیانو د غټو غټو علماؤ دومره عبارتونه (جواباً) نقل کړي وې چه دیوبندیانو ته به خپل مخ پټول مشکل شوي وې، خو خیانت، ظلم، دروغ او بے هوده خبرې دا د دیوبندیانو سره ښائي. د الله تعالیٰ شکر دې چه زه صرف حق خبره د حق ثابتولو او باطله خبره د باطله ثابتولو سره غرض لرم او حق وینا په ښکاره میدان بیانول زما شعار او نښه ده. اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰی اِحْسَانِهٖ

# د تهمتونو انبار

”یو طرف ته زمونږ د سُستئ دا حالت دې چه د هغوئي (يعني د اعلیٰ حضرت بریلوی عَلَيْهِ الرَّحْمَة) مُتَعَلِّق کتابونه لیکل خو جُدا خبره ده، ټچپله د هغوئي ډير کتابونه تر اوسه پورې نه دي چاپ شوي او بل طرف ته (د مخالِفینو له طرفه) مسلسل د تقریر او لیك په ذریعه د امام احمد رضا خان په شخصیت پورې تهمتونه تړلې کیږي. د هغوئي د قیمتي خدمتونو د اعتراف کولو په ځائ ئې د هغوئي خِلاف د تهمتونو انبار لګولې دې. دا سلسله د یو څو کالو نه نه، بلکه د نیمې صدئ نه جاري ده، په لاشعورئ (يعني خطا) کښې نه بلکه ښه په مُنَظَّم انداز کښې او صرف په پاك و هند [يعني هندوستان او پاکستان] کښې نه بلکه په پوره دنیا کښې (دا سلسله جاري ده). او د هغې لازمي نتیجه دا را اووتله چه د نن سنجیده انسان د هغوئي طرف ته مُتَوَجِّه کیدو نه يَره محسوسوي. عام طور د امام احمد رضا خان په باره کښې مشهور دي چه هغوئی مُكَفِّرُ الْمُسْلِمِيْن (يعني مسلمانانو ته کافر وئیلو والا) وو، او دا چه په بریلي کښې هغوئي د کافر جوړولو مشین لګولې وو. نن په دُنیا کښې چه څومره تحقیق کوونکې اداري دي، هلته په امام احمد رضا خان باندې کار کول خو یو طرف ته بلکه نوم ئې هم

نه موندلې کیږي.1 د سوانح نګارئ [یعني د شخصیاتو یادونه لیکل] او تاریخ نګارئ [یعني تاریخي واقعاتو لیکلو] په باره کښې د تَعَصُّب او تنګ نظرئ نه کار اخستې کیږي. د امام احمد رضا خان سره د اختلافاتو جذبې د هغوئي ټولې کارنامې په سِپن لاهُو کړي دي. امام احمد رضا خان د هغه ملغلرې په شان دې کومه چه د خپلو ځلیدلو پلوشو په ذریعه ټول عالَم روښانه کول غواړي خو د هغوئي کارنامې د غلط فهمو، او الزامونو په پردو د پټولو کوشش کیږي. د وخت دا څومره افسوسناکه خبره ده چه د یوې ډلې دِ (د مُبالغې سره) صِفَتونه بیان کړې شي او د دویمې ډلې دِ هډو ذِکر هُم اُونکړې شي؟ کاش چه! زمونږه مُصَنِّفینو او دانشورو په فراخه زړه او اَعلیٰ ظرفئ د امام احمد رضا خان د موقف تَجزِیه کړې وې او د دیوبند د مشرانو سره ئې د هغوئي د اختلاف غیر جانبداره جائِزه اغستې وې نو نن به د ډیرو جګړو وجود هم نه وو. ضرورت [د دې خبرې] دې چه د اختلاف په اَهَمِّیَّت باندې په صحیح طریقه د پوهیدلو او پوهَه کولو کوشش اوکړې شي چه موجوده نوې نسل بې یَرې امام احمد رضاخان ته نِزدې شي.“

---

[1] د لوستونکو د ښودنې د پاره عرض دې چه اوس ۱۹۷۹ء کښې صورتحال مختلف دې. د الله په فضل و کرم اوس د اعلیٰ حضرت بریلوي د علمونو نه په ایشیا او په یورپ کښې ښه فائده اخستې کیږي.

د اَلمِیزان د اصل عبارت نه پس، د جوہانس برگ سے بریلی د مُصَنِّف خیانت اوکورئ. هغه لیکي........

**عنوان:** ”د مولوي احمد رضا په باره کښ د یو بریلوي عام خیالات“

”د نن سنجیده انسان دې طرف ته د مخ کولو نه یره کوي. عام طور د امام احمد رضا خان په باره کښ مشهور دي چه هغوئی مُكَفِّرُ الْمُسْلِمِين (یعني مسلمانانو ته کافر وئیلو والا) وو، په بریلي کښ هغوئي د کافر جوړولو مشین لګولې وو. نن په ایشیا کښ چه څومره سائنسی اداري دي، په امام احمد رضا باندې کار کول خو پریږده، د هغوئي نوم هم نه اخلي.“

(ماہنامہ المیزان، ص ۲۹ بمبئ احمد رضا نمبر)

۞ د جوہانس برگ سے بریلی، په پارټ۳ ص ٤٢ کښ د خیانت، بد دیانتئ او دروغو یو بل مِثال اوګورئ: د جوہانس برگ سے بریلی مُصَنِّف لیکي چه په بریلیانو کښ د یو مولوی مظهرالله دهلوی څوئ پروفیسر مسعود احمد صاحِب صحیح بیان کړې دې چه د مولانا احمد رضا خان متعلق د ډیرې مودې نه دا خبره عامه ده چه هغوئي د جاهلانو مشر دې.

(فاضل بریلوی اور ترکِ موالات، ص۵، مرکزی مجلس رضا)

**محترمو لوستونکو!** حضرت پروفیسر محمد مسعود صاحب ته ”ماهِرِ رَضَوِیات“ وئیلې کیږی، هغوئي د کلونو نه د اعلیٰ حضرت فاضل بریلوي په باره کښ قابِلِ قدر او تحقیقي لیکونه یاد کار جوړوی. هغوئي د بَرِّصغیر د یو نوموړي او جَیِّد عالِم و فاضل حضرت مُفتيِ

اعظم مولانا محمد مظهرالله ، شاهي امام و خطيب جامع مسجد فتح پوري (دِهلی والا) صاحِبزاده (يعني ځوئ) دي او ډېر قابل او لائق محقق، اديب او عالم و فاضل دي او د پاکستان په علمي او تحقيقي حلقو کښې مقتدر او مستند شخصيت شميرلې کيږي. د ”فاضلِ بریلوی اور ترکِ موالات“ په نوم د هغوئي تاليف [يعني کتاب] مرکزی مجلس رِضا، لاهور په ۱۹۷۱ء کښې چاپ کړې وو. د هغه کتاب په آخره کښې د پروفيسر مسعود احمد صاحِب په باره کښې د اهلِ علم و دانش او د مخالفينو له طرفه هم د ستائنې تبصرې دي. د هغه کتاب په صفحه۵ چه د ”پيش لفظ“ په نوم کوم ليك دې، د هغې يو مکمل پيراګراف وړاندې کووم، هغه دا چه لوستونکو ته د ”جوہانس برگ سے بریلی“ د بَد باطِنه مصنِّف د خيانت او دروغو اندازه اوشي. پروفيسر صاحِب ليکي:

”فاضل بريلوي عَلَيۡهِ الرَّحۡمَة د خپلې زمانې جَليلُ القدر عالِم وو خو په عِلمی حلقو کښې تر اوسه پورې (د هغوئي) صحيح تعارُف نه دې (وړاندې کړې) شوې، جدِيد تعليم يافته ډله خو د ډيره حده پورې (د هغوئي نه) ناخبره ده،چنانچه په يو مجلس کښې کوم ځائ چه دا ليکونکې (پروفيسر مسعود احمد) هم موجود وو، يو فاضل اوفرمائيل چه د ”مولانا احمد رضا خان اکثر منونکي خو جاهِلان دي.“ يعني هغوئي د جاهلانو مشر وو، اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَيۡهِ راجِعُوۡن. ضرورت د دې خبرې دې چه د (اِمام احمد رضا خان رَحۡمَةُ اللّٰهِ تَعَالٰی عَلَيۡه) يوه رښتيا، صحيح، مُستنده، حقيقي

او مُدَلَّل سوانِح (یعني د ژوند حالات) د جدید سوانِحي او تحقیقي اُصولو مطابق اولیکلې شي او د هغوئې علمي کارنامې په کامِل انداز کښې خلقو ته وړاندې کړې شي."

**محترمو لوستونکو!** کوم کتاب چه د اعلیٰ حضرت فاضل بریلوي د علمي فضیلت او مرتبې واضح کولو د پاره پروفیسر صاحِب لیکلې دې، د هغه کتاب "*فاضل بریلوی اور ترکِ موالات*" په صفحه ۵ کښې چه کوم اصل عبارت دې، هغه تاسو اُولوستو او د دې نه مخکښې تاسو د *جوہانس برگ سے بریلی* خیانت کوونکي مُصَنِّف لیکلې شوې د ځان نه جوړ کړې د دروغو بیان هم اوکتلو. یعني په ذِکر شوي کتاب کښې چه کومه خبره د سره هډو بیان شوي نه ده، هغه د *جوہانس برگ سے بریلی* مُصَنِّف پخپله د ځان نه جوړه کړي او چاپ کړي ده. آیا دیوبندیان وهابیان تبلیغیان هُم دې ته "د حق وَینا او د دِین تبلیغ" وائې؟

لوستونکي د دې نه اندازه لګولې شي چه د *جوہانس برگ سے بریلی* کتابچو او د هغې د لیکونکو اصلیت او حقیقت څه دې. کاش چه دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د خپلو ذِهنونو او زړونو نه د بُغض او تَعَصُّب او پټې دُښمنۍ خِیرې لرې کړې وې، خو د هغوئې کار هُم دا دې چه د خپلو تیَرو ختمولو په ځائې د حق د رڼړا ختمولو ناپاکه کوششونه کوي او خپلې اعمال نامې نورې تورَوي، خو دُنیا اولیدله چه فتح او کامیابي او عِزَّت او اوچتوالې صِرف د اَهلِ حق حِصّه ده، د الله شُکر

دي چه اوس هر طرف ته اعلیٰ حضرت فاضل بریلوی رحمۃ اللہ علیه د حق
او حقیقت نشان جوړ شوي دي او د اعلیٰ حضرت بریلوی رحمۃ اللہ علیه
مخالفین د خپلو خُلو او قلمونو په ذریعه خپل ځانونه رُسوا کوي.

**محترمو لوستونکو!** تاسو اولوستل چه په خپلو خُلو ځان ته علمائے
حق وئیلو والا دروغژنو او خیانت کوونکو او د دِین بربادولو والا
دیوبندیانو وهابیانو اصل مخ دا دې. د دوئي د اصل مخ لیدو نه پس
به تاسو هم وائي چه دا دیوبندیان، وهابیان، تبلیغیان بیشکه په دِین
پورې ټوقې او خنداګانې کوي او دا خلق د الله نه بالکل نه یریږي.

دا کتاب چه تاسو اولولئ نو د دې د لیکلو مقصد به تاسو ته واضحه
شي. ”**د دیوبند نه بریلي ته**“ کتاب کښې تاسو د دیوبندیانو د غټو عُلماؤ
شلویښت عبارتونه کتلي وو کوم چه د اِختلاف بنیاد دي. په کتاب
کښې تاسو د هغوئي د عبارتونو په باره کښې پخپله د عُلمائے دیوبند
فتوې (شرعی رائے) اوکورئ او اندازه اوکړئ بلکه د خدائے تعالیٰ
قدرت ته اوګورئ چه الله پاك پخپله د عُلمائے دیوبند د خُلو او قلمونو
په ذریعه (د هغوئي د غلطو او کفریه عبارتونو خلاف) په هغوئي پورې
فتوې اونښلولې. د رافضیانو دا حال دې چه هغوئي خپلې سینې وهي
او ماتم کوي او د صحابؤ سره د بُغض ساتلو په وجه پخپله ځان ته
سزا ورکوي. هُم دغسې عُلمائے دیوبند د نبـی کریم صَلَّی اللہُ تَعَالٰی عَلَیْہِ وَاٰلِہٖ وَسَلَّم
په شان کښې د ګُستاخئ کولو په وجه پخپله د خپلو فتوو په ذریعه

ذلیله او رُسوا شو ځکه چه پخپله د خپلو عُلماؤ خِلاف فتوې چاپ کوي او په ځان پورې دُنیا خندوي. لوستونکو ته به د دیوبندیانو، وهابیانو تبلیغیانو د عُلماؤ دا دوه مخیزه انداز ضرور خوند ورکوي او لوستونکي به په دې خبره پوهه شي چه واړه او لوئي ټول عُلمائے دیوبند بالکل ښه خلق نه دي. که واقعي د هغوئي په نِزد د هغوئي د عُلماؤ ټول لیکونه معتبر او دلیل دي نو د دې خبرې په منلو کښې ولې شرم محسوسوي چه د سُنی علمائے حق فیصله د دیوبندیانو، وهابیانو عُلماء په باره کښې هیڅ کله هُم غلطه نه ده. په دې موقع باندې د دې نه هم خبر شئ چه د عُلمائے دیوبند کفریه او غلط عبارتونه (په یوه صفحه) اولیکلې شو او د هغې په باره کښې د دیوبندیانو مفتیانو نه فتوٰی اوغوښتې شوه او دا خبره ورته ښکاره نه کړې شوه چه دا عبارتونه چا لیکلي دي؟ نو هغوئي په هغه عبارتونو فوراً د کُفر فتوٰی ورکړه، خو چه کله ورته دا خبره ښکاره کړې شوه چه دا عبارتونه د هغوئي غټو دیوبندیانو عالِمَانو لیکلي دي نو بیا ئې په خپله فتوه ورکولو افسوس کړې دې.[1]

د دې دیوبند پرستو مولیانو د دې عمل نه دا ثابته شوه چه د عُلمائے دیوبند په نِزد د حق او صداقت څه اَهَمِّیَّت نشته بلکه د

---

[1] د عُلمائے دیوبند د فتوو داسي یو څو مثالونه په ''تعارف عُلمائے دیوبند'' (مُصَنِّف خطیب اعظم پاکستان حضرت مولانا محمد شفیع اوکاړوي رحمۃاللہعلیه) کښې اوګورئ.

هغوئي په نزد د هغوئي د يو ځو عُلماؤ حيثِيَّت زيات اهم دې.

چنانچه اوګورئ، د ګنګوهي صاحب په نِزد په صحابهٔ کرام عَلَيْهِمُ الرِّضْوَان کښې کوم يو صحابي ته کافر وئيونکې د اهلِ سُنَّت نه نه خارجيږي. هغه ليکلي:

”څوك چه په صحابهٔ کرامو کښې کوم يو (صحابي) ته کافر اووائي هغه ملعون [يعني لعنتي] دې، داسي کس د جُمات امام جوړول حرام دي او هغه د دې خپلې کبيره [ګناه] په سبب د سُنَّتِ جماعت نه خارج نه دې.“ (فتاوٰی رشيديه ص۱۴۱، مطبوعه کتب خانه رحيميه، سنهري مسجد، دهلي، ۱۳۵۲ھ)[1]

غور اوکړئ چه په صحابهٔ کرامو کښې د حضرت ابوبکر صِدِّيق رضی اللہ عنه نه واخله د آخِری صحابي پورې ټول شامِل دي او فقهاؤ او د اهلسنت امامانو دا وضاحت فرمائيلې دې چه کوم يو صحابي ته کافِر وئيلو والا کس، د اَهلِسنت نه وتلې دې بلکه د حضرات ابوبکر صِدِّيق او عمر فاروق رضی اللہ عنهما په شان کښې تَبَرّا کولو والا بيشکه کافر دې. خو د ګنګوهي صاحب په نِزد کوم يو صحابي ته کافر وئيونکې

---

[1] ”اداره اسلاميات“ لاهور د ”تاليفاتِ رشيديه“ په نوم فتاوٰی رشيديه مکمله د بابونو په صورت کښې ۱۹۸۷ء کښې چاپ کړي ده او په هغې کښې ئې د ګنګوهي صاحب دا فتوٰی نه ده چاپ کړې. هغوئي داسي ولې کړي دي؟ ښکاره خبره ده چه د دې فتوې په وجه په ګنګوهي صاحب باندې سخت اعتراض راتلو او د دې اعتراض جواب د عُلمائے ديوبند سره نشته، خو عُلمائے ديوبند دِ ياد ساتي چه د نوي چاپ نه دا فتوٰی ويستلو باندې په ګنګوهي اعتراض نه ختميږي.

لا کافر خو څه بلکه د سُنَّت جماعت نه هم نه دي وتلي. فَیا لِلعَجَب [افسوس ډیره عجیبه خبره ده] .........

ثابته شوه چه د دې دیوبند پرستو مُلایانو وهابیانو په نِزد چه د خپلو عُلماؤ څومره قدر دې دومره قدر د دوئي په نزد د صحابۀ کرامو رضی الله عنهم نشته، خو د دې باوُجود ځان ته سپاهِ صحابه وئیل خوښوي.

۞ لوستونکي به شاید دا معلومول غواړي چه زما د پاره دا موضوع دومره اَهَمَّه ولې ده؟ د دې مختصر جواب خو دا دې چه زما مقصد دعوتِ حق دې او د حق لټولو کوشش هر مسلمان له پکار دې، چه خپل عقائد و اعمال دُرست اوساتلې شي.

لږ تفصیل اوګورئ. محترمو لوستونکو! عرض دا دې چه په هر مسلمان باندې د دِین او مذهب د تبلیغ فریضه لازمه کیږي خو د عُلومِ دِین نه د مکمل خبریدو نه پس، داسې نه دي پکار چه څوك بخپله صِرف د قرآنِ مجید ترجَمه اولوَلي یا د یو څو کتابونو مطالعه اوکړي او بیا ځان عالم ګنړي. په دیانت او اخلاص سره صرف د رضائے الٰهی د حاصلولو د پاره د دِین د خِدمت او د تبلیغ د پاره وتلي کس ته د یو نمونځ ثواب د احادیثِ نبوي نه د اِستِدلال مطابق د یو کم پنځوس کروړو (۴۹۰ ملین) نمونځونو هُمره [ثواب] ښودلي کیږي.

د دِین تبلیغ بیشکه ډیر لوئي سعادت دې، خو دا ډیره نازکه مُعامَله

ده. د اَمیرُالمُؤمِنین حضرت سَیِّدُنا عمر فاروقِ اعظم رَضِیَ اللہُ تَعَالٰی عَنْہُ د خلافَت په دور کښې سِوا د یو څو غټو غټو صحابۀ کرامو نه بل یو چا ته هُم د فتوٰی ورکولو اجازت نه وو.

د حدیث نَبَوی (علٰی صاحبها الصلوٰة والسلام) مطابق دا حکم دې چه په تاسو کښې څوك اووینې چه د هغه په مخکښې د شریعت و سُنَّت خِلاف څه کار کیږي نو لیدونکي ته پکار دي چه د خپل طاقت مطابق هغه د خپلو لاسو په زور منع کړي او که د دې طاقت نه لري نو په خُله دِ د هغې خلاف د حق آواز اوچت کړي او که لیدونکې دا هُم نه شي کولې نو کم از کم په خپل زړه کښې دِ هغه بد اوګڼړي خو صرف په زړه کښې بد ګڼړل د ایمان د ټولو نه کمزوري درَجه ده.

(مُسلم، ابوداؤد، نَسائي، اِبنِ ماجه، مسنداحمد)

د دې فرمان نبَوی(صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَسَلَّم) مطابق په هر مسلمان باندې لازم دي چه هغه د خپل طاقت مطابق د دِین د مخالفینو مخ نیوې اوکړي. د دې موضوع د پاره د یو تفصیل ضرورت دې، خو خُلاصه کلام دا دې چه د دې فرض ادا کولو د پاره هر مسلمان ته اوّل د خپل ایمان و یقین صحیح او پوره معلومات [پکار دي] او په دې کښې مضبوطي او ثابت قدمی پکار ده او د خپلو عقائدو او اعمالو د صحیح کولو خاص خیال ساتل پکار دي.

که مُبَلِّغ پخپله په صحیح لاره نه وي نو د هغه تبلیغ به بې فائده

وي. او دا عام حقیقت دي چه په موجوده ماحول کښې تش د نوم مُبَلِّغِین او ځان علماء ګنړلو والا خلق (اِلّاماشآءالله) ټول نه خو اکثر د خپلو احوالو نه غافِله دي. د نیکۍ د ترغیب او د بدۍ نه د منع کولو د پاره په دانائۍ سره او په ښه انداز کښې د نصیحت کولو حکم دې. خو کیږي دا چه داسې تش د نوم علماء صرف فتوې ورکوي او په معاشرتي خرابو کښې پخپله د نورو نه وړاندې وړاندې شامل دي. د تبلیغ په نوم باندې دِین فروشي او هره ګناه کیږي. فتوې صرف د نورو خلقو د پاره دي، او تش د نوم عُلماؤ د خپل ځان د پاره هر شجرِ ممنوعه [یعني هر حرام څیز] حلال کړې دې.

د مسلم مُعاشرې په ښه کولو او خرابولو کښې د عُلماؤ ډیره غټه حصّه ده. دا هُغه طبقه ده چه د دوئي خوا ته پینځه وخته مسلمانان راجمع کیږي. د ماشوم د پیدا کیدو نه واخله د نکاح او طلاق او مړي [پورې] تقریباً په هره مُعامَله کښې د عُلماؤ دخل دې. د دوئي وینا او عمل خلق د خپل ځان د پاره سند او قابِلِ عمل ګڼړي. که عُلماء صحیح شي او په دیانت او صداقت سره خپل فرائض منصبي ادا کوي، نو یقیناً هغوئي به د مُعاشرې د باقي ټولو خلقو د پاره بهترینه نمونه او مِثال جوړ شي او که هغوئي غلط روان شي نو د هغوئي نه د اثر اغستونکو خلقو د بدۍ وبال [یعني عذاب] به هم په هغوئي وي. دا تش د نوم عُلماء اکثر ”آیات قرآني“ احادیث نبوی او دلیلونه خپلو

اوریدونکو ته شاید صرف د متاثره کولو د پاره بیانوي. د هغوئي په خپلو زړونو او باطن باندې د هغې هیڅ اثر نه کیږي، هم دا وجه ده چه د مُعاشرې خرابي برقراره پاتې شي. په تبلیغِ دین کښې د عقائدو او نظریاتو نه علاوه عبادات، مُعامَلات، اخلاق او کردار ټول شامِل دي. او هر مُخلِص مُبَلِّغ په خپل لِیك او تقریر کښې د دې ټولو خبرو تبلیغ کوي او خپل ځان د هغې عملي نمونه جوړوي. خو نن چه د دیوبندیانو وهابیانو تبلیغي جماعت څه کوي هغه د چا نه پټ نه دي. په ښکاره خو خپل مقصد د کلِمې او د نمانځه تلقین کول بیانوي خو د دِین د تبلیغ په نوم صرف د دُښمنئ او بې ځایه ضد په وجه هر رښتیني مُسلمان ته مُشرِك او بدعتی وئیلو باندې نه ستړي کیږي. دا تبلیغي جماعت والا، د سینما هال په دروازو کښې، د سمندر په غاړه، د جوارئ په اډو کښې، د شرابو په دکانونو کښې او د بدو په لاره باندې روانو گُمراهه خلقو ته نیغه لاره نه ښائي، دا [تبلیغیان] د نشې د څیزونو کاروبار کوونکو لار نه بندوي، دوئي ته چه اوگورئ نو دوئي به د سُنّیانو په جُماتونو کښې د صلوٰة و سلام نه منع کول کوي، د فاتحه او میلاد خلاف سازشونه کوي. دوئي په مدینه مُنَوَّره کښې د مسجدِ نبَوي نه مسلمانان مسجد ضرار (چه د هغې نوم هغوئي مسجدِ نور ایښودې وو هغې) ته بوتلو والا دي.......

شیطانِ لعین خدائے پاك ته وئیلي وو چه ”زه به ضرور ستا په نیغه

لاره کښې هغوئي (یعني رښتیني مسلمانانو) ته (پټ) کښېنم.“ یعني هغه خلق به شیطان بې لارې کوي کوم چه په صراطِ مستقیم (یعن په نیغه لاره) وي ځکه چه کوم خلق ګُمراه شوي دي هغوئي خو هسې هُم د شیطان په طریقه او لاره روان دي، په هغوئي باندې د شیطان د ډېر زیات کوشش کولو ضرورت نشته. شیطان خو به هغه خلق ګمراه کوي څوك چه په نیغه لاره روان وي.

**محترمو لوستونکو!** فیصله تاسو اوکړئ، تاسو به پخپله کتلي وي چه دا تبلیغیان، دیوبندیان وهابیان صرف په هغه خلقو پسې شوي دي څوك چه جُماتونو ته او د اولیاءُ الله دربارونو ته ځي. تاسو به کتلي وي چه دوئي په نیغه لار روان خلق د نیکو کارونو نه منع کوي، د هغه کارونو نه کوم کارونه چه د رحمت او سعادت او د الله تَعَالٰی او د رسولُ الله ﷺ د رضا کارونه وي. اوس تاسو پخپله اووائې چه آیا دا دیوبندیان، وهابیان، تبلیغیان د شیطان پیروي نه کوي؟

دا خادمِ اهلسنّت، د رسول پاك ﷺ د آل خدمتګار عرض کوي چه د تبلیغ په نوم خلق د دین نه محرومه کولو والؤ دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو نه خلق بچ کول او د دې دوکه بازو او مکارو د چالونو نه ایمانداره خلق خبرول او هغوئي ته د حق او د صداقت په لاره باندې د ثابت قدمئ د ترغیب ورکولو خدمت ډېر زیات اَهَمِّیَّت لري. او په دې باره کښې احکام او هدایات موجود دي، چنانچه د

رسولِ کریم ﷺ ارشاد مبارک دې چه......اِیَّاکُمْ وَاِیَّاھُمْ لَا یَفْتِنُوْنَکُم وَلَا یُضِلُّوْنَکُم .....اَوْکَمَا قَال (مشکوٰۃ) تاسو خپل ځانونه د دې (بدعقیده خلقو) نه بچ ساتئ او د دوئ نه لرې اوسیږئ (چه) نه هغوئې تاسو په فِتنه کښې اخته کړې او نه تاسو ګمراه کړې. ځکه چه د دوئ د صُحبت او ملاقات او ناستې ولاړې به بد اثر کیږې. په یو روایت کښې دې چه د فاسق او فاجِر (بدکار) تذکره کوئ. یعني د دې بدمذهبو په باره کښې خلقو ته وائې چه خلق د دوئې د دوکه بازئ او سازشونو نه ځان ساتې. قرآن دا وائې چه د ټولې زمکې هُمره سره زر هم د ایمان بدله نه شي کیدې. د چا سره چه معمولې سره زر وې هغه د هغې د حفاظت څومره خیال ساتې نو بیا د بیش بها اِیمان حفاظت څومره ډیر پکار دې! ځکه چه اِیمان د خلاصی او د کامیابئ ذریعه ده. لِهٰذا په صحیح عقائدو باندې د ثابِت قدمه اوسیدو نه بل یو څیز هُم زیات اهم نه شي کیدې، چنانچه د قرآن و سُنَّت مطابق د صحیح عقیدې ساتلو تلقین کول بیشکه ډیر زیات اَهَمِّیَّت لرې. غیرمُسلمه مسلمانول شاید چه دومره ګران نه دې، څومره چه یو تش د نوم مسلمان په کامِل دِین پوهه کول او د هغه په زړه کښې د رسول ﷺ د مَحَبَّت عظیمُ الشَّانه خزانه اچول مشکل دې، ځکه چه د ماده پرستئ په دې دور کښې عَالَمِ اسلام په دې وجه د بربادئ سره مخ دې چه مسلمانانو ته د نبی ﷺ په نِسبت کښې هٰغه کمال نه دې حاصل کوم چه

پخوانو مسلمانانو ته حاصل وو. دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو او نورو باطلو ډلو چه مسلمانان په کوم انتشار کښې اخته کړي دي، د هغې نتیجه نن د خلقو د دِین نه د لرې والي او فرقه بندئ او په هغې کښې د حد نه د اووښتو په صورت کښې مونږ ته ښکاره ده. نن هم صرف هغه خلقو ته د زړه اِطمینان حاصل دې د کومو خلقو چه تَعَلُّق د نبی ﷺ سره مضبوط دې.

دا دیوبندیان وهابیان تبلیغیان د شیطان علم د نبی ﷺ د عِلم نه زیات منی. د دې خلقو دا عقیده ده چه اللّٰه ته هم د مخکښې نه علم نه وي، چه کله بنده یو کار اوکړي نو هله اللّٰه ته علم اوشي. د دې خلقو دا عقیده ده چه اللّٰه دروغ وئیلې شي. د دې خلقو دا عقیده ده چه نبی (ﷺ) زمونږ په شان عام انسان دې. د دې خلقو دا عقیده ده چه څنګه یا څومره علمِ غیب چه رسُولُ الله ﷺ ته دې داسي علم خو څاروو، لیونو او ماشومانو ته هم حاصل دې او د حُضُورِ اکرَم ﷺ نه پس نبی پیدا کیدل ممکن دي ....(اَلْعَیاذُ بِالله).

دا خلق بڅپله د خوږ آقا ﷺ په دربار کښې څه نِزدیوالې نه لري، نو نورو خلقو ته به څه فیض اورسوي؟ او د دې خلقو خو دا عقیده ده چه د هر قِسمه فائده او نقصان ورکوونکې صرف او صرف اللّٰه دې، یو مخلوق هُم چا ته څه فائده یا نقصان نه شي رسولې، او وائي چه که څوك د یو مخلوق نه د څه نفعې [یعني فائدې] اُمید لري اګرکه

هغه د اللّٰه په اِذن نفع ورکوونکې اوګڼري، هغه هم مشرِك دې. د دوئ نه تپوس اوکړئ چه که ستاسو دا عقیده ده نو بیا تبلیغ د څه د پاره کوئ؟ مدرسې د څه د پاره جوړوئ؟ کتابونه ولې چاپ کوئ؟ تقریرونه ولې کوئ؟ اجتماع ولې کوئ؟ که ستاسو مقصد نفع [فائِده] رَسَوَل وي نو دا کار خو د اللّٰه دې او ستاسو د عقیدې مطابق یو مخلوق هُم چا ته نفع نه شي رسولې، یعني پخپله د خپلې عقیدې خِلاف کوئ او پخپله د خپلو فتوو مطابق مشرك جوړیږئ یا بیا خپل ځان ته خدائے وائې.

دې خادِمِ اهلِسُنت په خپل کتاب "**د دیوبند نه بریلی ته (حقائق)**" کښې په دې موضوع باندې ډیر څه عرض کړي دي. اوس د دې کتاب په مندرجاتو کښې به زما په هغه تیر شوي کتاب کښې درج د دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د څلویښتو عبارتونو تصدیق پخپله د هغوئي نه وړاندې کیږي بلکه د دې دیوبندیانو وهابیانو صحیح شکل به پکښې لږ نور هم واضحه شي او خلق به د هغوئي د شر نه یقیناً بچ کیدل غواړي. عُلمائے اهلِسُنَّت او اولیائے کرامو خلق مسلمانان کړي دي او په ټوله دُنیا کښې چه څومره اولیاءُاللّٰه تیر شوي دي هغوئي ټول صحیحُ العقیده اهلسُنّت و جماعت والا وو، په بل یو مسلك کښې هُم یو غوث، قطب یا ابدال نه دي جوړ شوي، دا د دې خبرې ښکاره دلیل دې چه صرف اهلِسُنّت اهلِ حق دي ګڼي

دوئي ته به د وِلایت اِنعام نه حاصليدو. او اهلِسُنَّت و جماعت هم هغه انعام یافته ډله ده د چا په لاره د تللو دُعا چه د نمانځه په هر رکعت کښ کیږي، هُم دې اهلِ حق په هر طرف د دِین د تبلیغ صحیح فریضه ادا کړي ده، ګني دا تبلیغیان دیوبندیان وهابیان خو صحیح مسلمانانو ته مشرك او بدعتي وائي او پخپله د ګمراه کیدو سره سره نور خلق هم ګمراه کوي.

**محترمو لوستونکو!** د دې مختصر تفصیل نه پس تاسو پخپله اووائې چه آیا د رښتیني مسلمان د ایمان حفاظت څه معمولي کار دې؟ آیا د اسلام د دښمنانو نه ایمانداره خلق خبرول څه معمولي خبره ده؟ آیا حق حق ثابتول او باطل باطل ثابتول ضروري نه دي؟ زه رښتیا عرض کووم چه دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو ته هم ښه معلومه ده چه د دوئي غټو عُلماؤ کفریه عبارتونه لیکلي دي او د هغه عبارتونو کُفریه کیدل دوئي پخپله هُم تسلیم کړي دي.[1] خو

---

1 چنانچه په لاهور کښ د انجمن صِیانۃُ المُسلمین او انجمن ارشادُ المُسلمین په نوم قائمو شوو ادارو اوس د خیانت د پاره یو دوکه کړي ده چه د خپلو مشرانو په کتابونو کښ ئې د کفریه عبارتونو متن بدلول شروع کړي دي. چه راروان نسل ته په پخوانو کتابونو کښ درج کفریه عبارتونه اُو نه رسي او نوې چاپ اصل تحریر ثابت کړې شي. حالانکه حقائق پټول او کفر ایمان ثابتول او پیش کول دوه ګونه جرم دې. بیا هم د هغوئي د دې حرکت نه دا ثابتیږي چه د موجوده علمائے دیوبند په نِزد هم کفریه عبارتونه یقیناً کفر دې ګني د هغه عبارتونو د بدلولو ضرورت ولې پیښ شو؟

صرف د دروغو د ضد او د خپلو غیر مُسلمو مشرانو د خوشحالولو د پاره دا خلق د حق قبلولو ته نه تیاریږي. حیرانتیا او افسوس دې چه دوئي د اللّٰه تَعَالیٰ او د هغه د رسول ﷺ د راضي کولو هیڅ پرواه نه کوي.

په داسي سوچ ډیر ډیر افسوس دې چه دا خلق د رسُولُ الله ﷺ په توهین او کمي بیانولو هیڅ غم او افسوس نه کوي. د ایمان د نقصان څه فِکر نه لري، دوئي که خفه دي نو صِرف په دې خبره خفه دي چه د دوئي د څلور پینځَوْ علماؤ په کفریه عبارتونو باندې د دغه عُلماؤ د کفر فتویٰ ولې ورکړې شوي ده؟ دا خلق سوچ ولې نه کوي چه که یو عالِم دین د چا په کُفریه قول و عمل باندې شرعي حکم جاري نه کړي نو آیا کفر به (د یو عالِم دین د شرعي حکم نه جاري کولو په وجه) عینِ اسلام جوړ شي؟ کفر خو په هر حالت کښې کفر دې او د اللّٰه تَعَالیٰ نه زیات څه، د هغه برابر یا د هغه په مثل هم څوك پوهیدو والا نشته. افسوس دا دې چه دا خلق د خپلو یو څو علماؤ د کُفریه عبارتونو په وضاحتونو او هغه عبارتونه عین اسلام ثابتولو په کوششونو کښې خپل ایمان هم ضائع کوي او د هغه کُفریه عبارتونو لیکونکو یو څو علماؤ ته د حکیمُ الأُمَّت، قطبِ حق، مُطاعُ العالَم او مجدد ملّت وغیره په وئیلو نه ستړي کیږي. حالانکه په دې اُصول دوئي هم پوهیږي چه د

کفر حِمایت کول هم کفر دي او د کافر د ستائنې کولو مطلب د اللّٰه تَعَالٰی قهر ته دعوت ورکول دي.

ے بلرزد عرش از مدح شقی

د مصرع ترجمه: د بدبخته په ستائنه عرش خوزیږي.

دا هم د قدرت کرشمه ده چه هُم د دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د کتابونو نه زمونږه د اهلِ سنّت و جماعت د عقائدو او اعمالو صحیح کیدل او جائز کیدل ثابت دي او په کومو خبرو چه دوئي مونږ ته مشرك او بدعتي وائي، هغه ټول کارونه دوئي پخپله هم کوي خو د شرك فتوٰی هغوئي صِرف زمونږ د پاره خاص کړي ده. حالانکه دغه شان دوئي دوه ځله مجرمان جوړیږي. یو خو صحیح کار ته د غلط وئیلو جُرم او دویم یو کار ته د غلط وئیلو باوجود پخپله د هغه کار کولو جرم، دا د دوئي بدقِسمتي نه ده نو نور څه دي؟

اللّٰه تعالٰی دِ د خپل حبیب ﷺ په خاطر مونږه د داسي خلقو نه او د هغوئي د شر نه اوساتي. آمین

د دې خادِمِ اهلسنّت ټولو سنیانو ته عرض دې چه د ایمان د دې ډاکوانو نه خبردار اوسئ. او د خپل ایمان د حفاظت د پاره د حقیقت نه ځان پوره پوره خبر کړئ. په مسلك حق اهل سنّت و جماعت باندې مُستحکم او مضبوط اوسئ. اللّٰه تعالٰی دِ د خپل حبیب ﷺ

د پیزار مبارك په خاطر زمونږ د ایمان حفاظت اوفرمائي او زمونږه آخره خاتِمه دِ ښه کړي، آمين

په راروانو صفحو کښې په يو کالم کښې د ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو د علماؤ د گستاخانه، کفريه او نورو عبارتونو اصل الفاظ نقل کيږي. د هر عبارت سره د کتاب او د هغې د مُصنف نوم او د کتاب د صفحې نمبر هم دې او په دويم کالم کښې د ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو علماؤ فتوٰی[1] نقل کيږي، چه د هغې مطابق هغه عبارت ټولې د علمائے ديوبند په نِزد هم کفر او شرك او غلط دې. يعني د هغوئي د خپلې گُزار ټولې د هغوئي په سر او د هغوئي څپيړه ټولې د هغوئي په مخ.........

---

[1] د فتوٰی معنٰی ''شرعي فيصله يا شرعی حکم'' ښودلې شوې دې او په يو عبارت باندې فتوٰی ورکولو والا او ليکلو والا ته ''مُفتی'' وائي او هغه د خپلو عقائدو نظرياتو مطابق فتوٰی ليکي. د علمائے ديوبند عباتونه او په هغه عبارتونو فتوې هم د علمائے ديوبند د معتبرو او معتمدو کتابونو نه اخذ دي دوئي خپل عبارتونه او تحريرونه هيڅ کله هُم نه شي پټولې، دوئي دِ ټولې فيصله اوکړي چه د دوئي عبارتونه او فتوې ټولې د دوئي د دروغژن کيدو او د دوئي د رُسوائې سبب دې او که نه؟

| د علمائے دیوبند عبارتونه ۱ | د علمائے دیوبند فتوے ۱ |
|---|---|
| (۱) ”صاحبانو! محمد ابنِ عبد الوهاب نجدی د دیارلسمې صدئ په شروع کښې په نجد عرب کښې ښکاره شو. او ولې چه هغه باطل خيالونه او فاسدې عقيدې لرلې، ځکه هغه د اهلِ سنّت و جماعت سره جنګونه اوکړل او د هغوئي قتل کول به ئي ثواب او رحمَت ګنړلو .... د سلَف صالحينو [يعني د پخوانو بُزُرګانو] او د هغوئي د تابعدارئ په شان کښې ئي ډير د ګستاخئ او بې ادبئ الفاظ استعمال کړي دي.... د محمد ابن عبدالوهاب دا عقيده وه چه د ټولې دُنيا خلق او د ټولو ملکونو مسلمانان مشرکان او کافر دي او د هغوئي سره جنګ کول، د هغوئي مالونه د هغوئي نه په زور اخستل حلال او جائز بلکه واجب دي...... (ابن عبدالوهاب | (۱) ” کوم الفاظ چه د سرورِ کائنات ﷺ د سپکاوالي وهم هُم لري، اګرچه وئيونکي د سپکاوالي نيت نه وي کړې نو بيا هُم د هغې په وجه وئيونکي کافر کيږي.“<br>(لطائف رشيديه، ص ۲۲، مصنف جناب رشيد احمد ګنګوهي. الشهاب الثاقب، ص ۵۷ مصنف جناب حسين احمد مدَنی) |

نجدي او د هغه ډله) د رسولِ مقبول صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ [د روضې مباركې] زيارت كول او د نبي صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ په روضه مباركه حاضري كول بدعت حرام ليكلي دي..... په هغوئي كښې ځيني د روضې مباركې د زيات سفر **معاذالله** د زنا درجې ته رسوي.

(۲) په شانِ نُبُوّت كښې وهابيان ډيرې د ګستاخئ خبرې كوي او خپل ځان د سرورِ كائنات برابر ګڼړي..... د هغوئي خيال دي چه د رسولِ مقبول صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ اوس په مونږه هيڅ حق او احسان پاتې نه دي ، او نه د هغوئي د وفات نه پس د هغوئي د ذات نه څه فائده شته. او په دې وجه په دُعا كښې د هغوئي د وفات نه پس د هغوئي د ذات وسيله وړاندې كولو ته ناجائزه وائي. د دوئي د مشرانو وَيناده **معاذَالله**، **معاذَالله**، [يعني د الله پناه، د الله پناه] نقلِ

**(۲الف)** په كومو الفاظو كښې چه د ګُستاخئ او بې ادبئ وهم غوندې وو، هغې ته هُم (جنابِ ګنګوهي) د جنابِ رِسالت مآب عليه السلام د تكليف باعِث وئيلي دي ...... او فرمائيلي ئې دي چه بس د دې كُفريه كَلِماتو بكواس كولو والا په سختئ سره منع كول پكاردي او كه [څوك پرې] قدرت لري او نه منع كيږي نو (كفر كوونكې)

کُفر، کُفر نه باشد، [یعني د بل چا کفر بیانول کفر نه دي][وائي] چه زمونږ د لاس لښته د نبی صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د ذات نه مونږ ته زیاته فائِده راکولو والا ده، مونږه په دې [د ځان نه] سپي هُم شړلې شو او د فخرِ عالم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ په ذات خو دا هم نه شو کولې ..... وهابیان چه ټول(مسلمانان) په معمولي شك کافران او مشرکان ګڼړي او د هغوئي مالونه او وینه توئیول حلاله ګڼړي ..... په بارګاهِ نبوت کښې د عقیدت او محبت په شعرونو وغیره باندې مشتمل کلام او خبرې خبیثان وهابیان مَعَاذَالله بد دِیني او شرك ګڼړي ..... د تبرکاتو [یعني د انبیاء عَلَیهِمُ الصَّلٰوۃُ وَالسَّلَام او بزرګانو سره نسبت لرلو والا څیزونو] ادب او تعظیم د وهابیانو په نِزد شرك وکفر او حرام دي .... وهابیان مسلمانان قتل کول پکار دي، ځکه چه (هغوئي) ضَرریان او د جنابِ کِبریا تعالٰی شانُهٗ او د هغه د رسولِ اَمین صَلَّی اللهُ تَعَالٰی عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم ګُستاخان دي."

(الشهاب الثاقب، ص۰۵ مصنفه حُسین احمد مدنی. لطائف رشیدیه ص۲، تالیفاتِ رشیدیه، ص۷۳، ۷٤، ص٦۸۸، مصنفه رشید احمد ګنګوهی مطبوعه اداره اسلامیات، ۱۹۸۷)

(۲ ب) "(کوم خلق) چه د اسلام او ایمان د دعوٰی کولو او محنت کوشش کولو سره انبیاءِ کرام عَلَیهِمُ السَّلَام ته کنزلې کوي (ګستاخي کوي) او د ضروریاتِ دِین انکار کوي، هغه قطعاً یقیناً د ټولو مسلمانانو په نِزد مرتد دي، کافر دي." (اشدالعذاب، ص٥، مصنف جناب مرتضٰی حسن دربهنګی، مطبوعه مطبع مجتبائي دهلی)

په معمولي معمولي خبرو باندې مشرك او كافر كوي. او د هغوئي مال او وينه مباح ګڼړي او ګڼړله به ئې..... وهابيان هميشه د حُضُورﷺ په باره كښې ګستاخانه خبرې كوي ..... د وهابيانو په عقيده او عمل كښې د نبــیﷺ د روضې د زيارت په غرض سفر كول حرام دي چنانچه د هغوئي رسالې او ليكونه موجود دي.“ (الشهاب الثاقب، ص۴۲، ۴۳، ۴۴، ۴۵، ۴۷، ۵۱، ۵۲، ۵۴، ۶۳. نقش حيات، ص ۱۲۰، ۱۲۲، ۱۲۳، ۱۲۶، ۴۳۲، مطبوعه دارالاشاعت، كراچى، تصانيف جناب حسين احمد مدنى، صدرمدرس، مدرسه ديوبند)

(۳) ”انبياء د خپل اُمَّت نه كه ممتازه وي نو صرف په علم كښې ممتازه وي، پاتې شو عمل نو په دې كښې ورسره اكثر په ظاهره اُمَّتيان برابر شي بلكه ترې وړاندي شي.“ (تحذير الناس، ص ۵، از محمد قاسم نانوتوى، كتب خانه مطبع قاسمى ديوبند)

(۴) ”څنګه چه د هر قوم ملك او د

(۳) ”د ټولو علماؤ په دې خبره اجماع ده چه د نبـئ پاكﷺ ګستاخي او توهين، بې ادبي او نقص بيانوونكي كافر دې او څوك چه د هغه (ګُستاخِ رسول) په كفر او عذاب كښې شك كوي هغه هُم كافِر دې..... د كفر د حكم دارومدار په

کلي خان [وي]، نو په دې معنیٰ هر پیغمبر د خپل اُمّت سردار دې.“
(تقوية الايمان ص ٦١)

(٥) ”د الله شان ډېر لوئي دې چه ټول انبياء او اولياء د هغه په وړاندې د يوې بيكاره ذرې نه هم كمتر دي.“
(تقوية الايمان ص ٥٤)

(٦) ”هر مخلوق كه غټ (نبـى) وي او كه وړوكې (غيرِ نبـى) هغه د الله د شان په مخكښ د چمار نه هم ذليله دي.“
(تقوية الايمان ص ١٤)

(٧) ”يعني انسانان په خپل مينځ كښ ټول وروڼه دي، كوم چه غټ بزرګ وي هغه مشر ورور دې، نو بس د هغوئي [يعني د نبي عليه‌السلام] د مشر ورور په شان تعظيم كوئ او مالِك د ټولو الله دې، بندګي د هغه پكار ده.“
(تقوية الايمان ص ٥٨)

(٨) ”اولياء و انبياء، امام او امام زاده، پير و شهيد يعني څومره چه د

ظاهر دې، په اراده او نِيَّت او د حال په قرينه باندې نه دې ..... علماؤ فرمائيلي دي چه د انبياء عليهم السلام په شان كښ جُرأت او بهادري كول كفر دې اګر كه توهين ئې مقصد هم نه وي.“ (اِكفارُالمُلحدين، ص٦٤، ٩١، ١٠٨، از جناب انور شاه كشميري، صدر مدرس ديوبند، مطبوعه دارالكتب علميه، اكوړه ختك، پشاور ١٩٨٤ء)

(٤ تا ٨) ”كوم كس چه د دې قائل وي [يعني اقرار كوي] چه نبـى كريم ﷺ ته په مونږه باندې بس صرف دومره فضيلت دې څومره چه د مشر ورور په كشر ورور باندې وي نو د هغه په باره كښ زمونږه دا عقيده ده چه هغه د ايمان نه خارج [يعني وَتلې] دې. “
(المُهنَّد ص٢٣، از علمائے ديوبند، مطبوعه

الله مُقَرَّب بندګان دي هغه ټول انسانان دي او بندګان عاجزان او زمونږه ورونږه دي، خو هغوئي ته الله لوئي والي ورکړې دې نو هغوئي مشران ورونږه شو." (تقوية الايمان ص ٥٨)

(٩) د "اَشرفُ المَخلوقات محمَّد رسولُ الله صلعم (ﷺ) خو د هغه [يعني د الله] په دربار کښې دا حالت دې چه د يو ګنوار [يعني د کلي د يو بې تعليمه سړي] د خُلې نه په دومره شان خبره اوريدو د يَرې نه وارخطا شو." (تقوية الايمان ص ٥٥)

(١٠) "د رسول په غوښتو هيڅ هم نه کيږي." (تقوية الايمان ص ٥٦، مصنف اسماعيل دهلوي مطبوعه فيض عام، صدربازار، دهلی)

(١١) " که چا په وجه د بنـی آدم کيدو هغوئي [يعني خوږ آقا](ﷺ) ته ورور اووئيلو نو ولې څه د نص خِلاف ئې اووئيل. هغه خو يچپله د

کتب خانه اعزازيه، ديوبند)

(٩، ١٠) "که په چا کښې يوه خبره هم د کفر وي نو هغه بالاجماع کافِر دې." (اضافاتِ يوميه، ج٧، ص ٢٣٤، از جناب اشرفعلی تهانوی مطبوعه اشرف المَطابع تهانه بهون، ١٩٤١ء)

(١١) "په تقوية الايمان(مصنف اسماعيل دهلوی بالاکوټی) کښې چه ځيني الفاظ سخت واقع شوي دي نو هغه د هٰغه زمانې د جهالت علاج وو ..... دا بيشکه بې ادبی او ګستاخي ده (کومه چه اسماعيل دهلوی په دې الفاظو کښې کړې ده) ........ د تقوية الايمان دا الفاظ هُم استعمالول نه دي

| نص موافق خبره کوي ..... په دې باندې طعن کول په قرآن و حديث | پکار.[1] "(فتاوٰی امدادیه، ج٤، ص ١١٩، از تهانوی. مطبوعه درمطبع مجتبائی، دهلی ١٣٦٤هـ) |
| --- | --- |

[1] (لوستونکي د دې خبرې نه خبرول ضروری دي چه د علمائے ديوبند د طرفه د "تقوية الايمان" د چاپ کولو او د مُفت [يعني بې پيسو] تقسيمولو سلسله مسلسل جاري ده. د "بے ادبئ او ګستاخئ" منلو باوُجود د دې کتاب د چاپ کولو او [د دې] خوروَل دا ثابتوي چه موجوده وهابيان تبليغيان په "بے ادبئ او ګستاخئ"کښې شريك دي. چنانچه د کفريه او ګستاخانه عبارتونو بيا بيا بيانولو او د هغې د چاپ کولو وغيره په باره کښې د ديوبنديانو د امام ګنګوهي فتوٰی په راروانو صفحو کښې کتلې شئ او د هغې مطابق د کفريه عبارتونو په باره کښې د ټولو ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو عقيده ثابته شوه او ټول ديوبنديان وهابيان تبليغيان د خپل ګنګوهي د فتوې مطابق بے ادبه، ګستاخه او بے دينه قرار شو. د دې نه علاوه د تقوية الايمان خلاف وينا او عمل هم په ديوبنديانو وهابيانو کښې عام دي او دغه شان هغوئي د خپل امام اسماعيل دهلوی مطابق کافر و مشرك او بدعتي وغيره قرار شو.)

د ديوبنديانو وهابيانو د امام او مشر اسماعيل دهلوي بالاکوټی د کتاب "تقويةالايمان" په باره کښې اسماعيل دهلوي پخپله هم منلي ده چه هغه په خپل کتاب تقوية الايمان کښې ډيره سختي کړې ده او نامناسبه الفاظ ئې استعمال کړي دي او شركِ خفي ته ئې شركِ جلي وئيلې دي. (ارواحِ ثلاثه، ص٧٣)او د ديوبنديانو وهابيانو دستګير او مددګار او "مطاع الکل، غوثِ اعظم" جناب رشيد احمد ګنګوهی عليه ما عليه وائي: کتاب" تقوية الايمان" ډير ښکلې کتاب دې او د شرك او د بدعت په رد کښې لاجواب دې. د دې کتاب (تقوية الايمان) استدلال بالکل د کتاب الله (قرآن) او احاديث نه دي. دا کتاب (تقوية الايمان) ساتل او لوستل عين اسلام دې." (فتاوٰی رشيديه ص١)

ګنګوهی نور وائي: "هغه (اسماعيل) قطعي جنتی دې او مخلص ولي دې داسې کس ته مردود وئيل پخپله مردود کيدل دي او داسې مقبول کس ته کافِر وئيل پخپله کافِر کيدل دي."........... "کوم کس چه دا (د قبر د طواف) عمل کوي هغه ته کافِر

حاصل دي.“ (تغيير العنوان، ص١٨، از تهانوی مطبوعه محمد عثمان تاجر کتب، دريبه، دهلی)

(٢) ”کوم علمِ غيب چه بې واسطه دې هغه خو د الله تعالىٰ سره خاص دې او کوم (علمِ غيب) چه په واسطه سره دې هغه د مخلوق د پاره کيدې شي.“ (بسط البنان، ص١٠، تهانوی)

(٣) ”په حفظ الايمان (مصنف تهانوی) کښې دا خبره منلې شوې ده چه سرکارِ دوعالَم ﷺ ته علمِ غيب د الله په عطا حاصل دې.“ (توضيح البيان، ص١٣، از مرتضىٰ حسن دربهنگي)

(٤) ”دغه شان په نصوص کښې د ځينو غيبونو متعلق دا ثابت دي چه د هغې علم حضور ﷺ ته هم شته او د داسې علم نسبت حضور ﷺ طرف ته کول جائز دې.“

(اضافات يوميه، ج٧، ص٤٢٣، تهانوی)

(٥) ”په دې کښې هيڅ کلام هم نشته چه د حضور ﷺ علوم غيبيه

جُزئیه په کمالاتِ نبویه کښې داخل دي، د دې انکار څوك كوي.‘‘

(ترجیح الراجح، ص۱۳٤ از تهانوی مطبوعه اشرف المطابع، تهانه بهون)

(٦) ’’څوك دِ دا شُبه نه کوي چه کوم علمِ غیب چه د الله تعالیٰ سره خاص دي، په هغې کښې د رسولانو شريك شو ځکه چه د الله تعالیٰ د خواصو نه دوه امره دي، د هغه علم ذاتي كيدل او د هغې محيط بالكل كيدل. دلته (رسولانو) ته ذاتي په دې وجه نشته چه د وحي په ذريعه دې او محيط په دې وجه نشته چه ځيني امور خاص مراد دي، پس دا په معنیٰ د الاعم غیب دي، نه چه په معنیٰ د الاخص.‘‘[1] (بیان القرآن، ص۱۵۰، تهانوی مطبوعه تاج کمپنی لمیټډ لاهور)

(٦) ’’د کوم يو انبياء، اولياء، امام او د شهيدانو په باره کښې دِ هيڅ کله دا عقيده نه ساتي چه هغوئي د غيبو خبر لري، بلکه د حضرت پيغمبر(ﷺ) په باره کښې دِ هُم دا عقيده نه ساتي او نه دِ د هغوئي په ستائنه کښې داسې خبره کوي، (ګني مشرك به شي).‘‘ (تقوية الايمان، ص ٢٥)

(٧) ’’ د غيبو خبره الله پيژني، رسول(ﷺ) ته څه خبر دې.‘‘

(تقوية الايمان، ص ٥٦ از اسماعيل دهلوی، مطبوعه فيض عام صدر بازار، دهلي)

[1] ’’اوريدلي مې دي چه هغوئي (يعني بريلوی علماء) علم غيب خو د جناب رسول الله د پاره ثابتوي خو د الله تعالیٰ د علم په شان علم محيط نه ثابتوي بلکه د هغوئي د علم غيب حد منې اِلیٰ اَنْ يَدْخُلَ اَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَاَهْلُ النَّارِ النَّارَ.(تر دې پورې چه جنتيان جنت ته او

(۷) ”خلق وائي چه علم غیب انبیاؤ او اولیاؤ ته نه وي، زه (حاجی امدادالله) وائم چه اهل حق کوم طرف ته نظر کوي د غیبو دریافت او ادراك هغوئی ته کیږي.“

(شمائم امدادیه، دوم ص ۱۱۵. امداد المشتاق ص ۷٦)

(۸) ”په قرآن مجید کښ د یو نه زیات ځائیونو کښ فرمائیلې شوي دي چه د ”الغیب“ علم د الله تعالیٰ نه سِوا بل چا ته نشته،..... خو د دې سره سره په قرآن کښ دي چه الله

(۸) ”پس په دې کښ د څلور وارو مذهبو امامان او ټول علماء متفق دي چه انبیاء علیهم السلام په غیبو باندې ”مطلع“ (یعني خبر) نه دي.“

(مسئله در علم غیب، ص۲، از گنگوهی مطبوعه دارالاشاعت، دیوبند)

---

دوزخیان دوزخ ته داخل شي). که دا صحیح وي نو (په داسي منلو) شرك نه ثابتیږي . ځکه چه د الله تعالیٰ خاص صِفَت علم محیط دې، علمِ محدود نه دې. نو اوس په مونږه او هغوئي (یعني بریلوی علماؤ) کښ اختلاف په یو امر کښ ممکن پاتې شو چه هغه واقع شو او که نه؟ یعنی دا علم اِلٰی مایَدْخُلُ اَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَاَهْلُ النَّارِ النَّارَ حضور (ﷺ) ته ورکړې شوې وو او که نه؟ مونږه وائیو چه دا (علم غیب) ورکول فِی نَفسِه ممکن دي خو د دې واقع کیدل په شریعت کښ چرې هم ثابت نه دي او هغوئي (یعني بریلوی عُلَماء) وائي، چه ثابت دي. زمونږه په نِزد هغه ټول دلیلونه د دې د واقع کیدو چه هغوئي (بریلوی عُلماء) ئې پیش کوي پوره نه دي او د هغوئي مدعا نه ثابتوي، نو د زیات نه زیات الزام، په هغه (بریلوی علماؤ) باندې دا پاتي شو چه هغوئي داسې خبره اومنله کومه چه د شرعي دلیل نه ثابته نه ده، او دا شان د بدعتي دې د کافر نه دې.“

(قصص الاکابر، ص ۲۵۳، اشرفعلی تهانوی)

تعالیٰ په خپلو رسولانو کښې چا له اوغواړي، په غیبو ئې خبروي، اوس سوال دا دې چه غیرُالله ته چه د غیبو کوم علم عطا کیږي په هغې باندې هم د "علمِ غیب" اطلاق کیدې شي که نه؟ قاسم نانوتوی لیکلي دي چه .... د غیرُالله طرف ته د علم غیب د نسبت کولو مطلب هیڅ څوك هم دا نه اخلي چه بِالذّات (یعني د ځان نه) د غیبو علم هغوئې ته حاصل دې بلکه هم دا ګنړي چه د غیبو د علم نه الله تعالیٰ هغوئې سرفراز کړي دي." (سوانح قاسمی، ج۲، ص ۵۸ از مناظر احسن گیلانی)

(۹) "غرض دا چه د لفظ عالمُ الغیب په معنیٰ کښې (تهانوی) دوه شِقونه بیان کړي دي او یو شِق په ټولو کښې (تهانوی) موجود مني." (الشهاب الثاقب، ص۱۰۶، از حسین احمد ټانډوی مدنی)

(۱۰) ”دا پیغمبر (ﷺ) د هر قسمه غیبو خبر ورکوي، که د ماضي سره متعلق وي او که د مستقبل سره، او که د الله د اسماء و صِفات سره (متعلق) وي، او که د احکامِ شرعیه سره، او که د مذهبونو د حقیقت او باطل کیدو سره (متعلق) وي، او که د جنت او دوزخ د احوالو سره (متعلق وي)، او که د مرګ نه پس واقعاتو سره(متعلق)وي اوددې غیبو څیزونو په خبر ورکولو کښې (دا پیغمبر ﷺ) یوه ذره بخل هم نه کوي.“

(حاشیه قرآن، ص۷٦٤، از شبیر احمد عثمانی، مطبوعه مدینه پریس، بجنور، ۱۳۵۵ھ)

(۱۱) ”هغه الله خپل رسولان منتخب کوي او څومره د غیبو یقیني اطلاع ورکول غواړي ورکوي. خلاصه دا شوه چه عامو خلقو ته بې واسطه د یو غیبو یقیني ”اطلاع“ نه ورکوله

کیږي، انبیاء عَلَیۡهِمُ السَّلام ته ورکول کیږي." (حاشیه قرآن، ص۹۵، از شبیر احمد عثمانی)

(۱۲) "خلاصه دا چه څنګه علم غیب د الله د ذات سره مخصوص دي چه په هغې کښې یو غیرالله هم شریك نه دې هم دغسې د الله د طرف نه په "غیبو باندې مطلع" کیدل د رسولانو سره مخصوص دي چه په هغې کښې یو غیرِ رسول هم شریك نه دې."..... الله تعالیٰ فرمائیلي دي: "مونږه رسولان په غیبو باندې "مطلع" (یعني خبر) کړي دي."

(علم غیب، ص ۳٤، ۱۳۵ از قاری محمد طیب سابق مهتمم دارالعلوم دیوبند)

(۱۳) "مړي ژوندي کول، اکمه و ابرص (یعني ړانده او د برګي والا) وغیره مریضانو صحت یاب کیدل، د غیبو خبر ورکول دا د حضرت عیسیٰ علیه السلام ښکاره معجزې دي." (تفسیر عثمانی، ص۱۷)

(**محترمو لوستونکو!** د دې عبارتونو او فتوو لوستلو نه پس به تاسو ته ښه اندازه لګیدلي وي چه مختلفې مختلفې خبرې کوونکي دا دیوبندیان وهابیان تبلیغیان پخپله په خپل مینځ کښې د یو بل خبره دروغ کوي او په خپل مینځ کښې یو بل کافِر کوي او د دې خبرې هغوئي ته هیڅ احساس نشته چه د هغوئي د دې مختلفو او متضاد خبرو په وجه د خلقو د دین سره د محبت زیاتیدو په ځائ هغوئي د دین نه لرې وَځي. دې خادمِ اهلسنت د نمونې په طور د علمائے دیوبند یو څو عبارتونه او فتوې پیش کړې چه منصف مزاج او عدل خوښوونکي خلق د حقیقت نه خبر شي او د دین دې غلو نه ځان اوساتي. اللّٰه تعالیٰ دِ مونږه د دوئي نه پخپله پناه کښې اوساتي)

**محترمو لوستونکو!** تاسو د علمائے دیوبند د عبارتونو خلاف پخپله د علمائے دیوبند فتوې اولیدلې. کیدې شي چه تاسو دا ګُمان لرئ چه د علماؤ د پاره د چا د کُفر فتوٰی جاري کول معمولي خبره ده. په دې باره کښې د خپلې رائے لیکلو په ځائ د دیوبندی عالم مرتضٰی حسن دربهنګي ارشاد وړاندې کووم، هغه اوګورئ:

هغه د خپل کتاب "اَشَدُّالعَذاب" په صفحه ۲ کښې لیکلي: "نه علمائے اسلام تادي کوي، او نه په فروعی، ظنیاتو او اجتهادی کارونو کښې څوك کافر جوړوي بلکه تر څو پورې چه د نمر په شان (د چا) کفر ښکاره نه شي د (علمائے اسلام) دا مقدسه ډله کله هم داسې جرأت نه کوي. د علماؤ نه چه ترڅو کیدې شي په کلام کښې تاویل کوي او صحیح معنٰی بیانوي، خو که د چا زړه پخپله جهنَّم ته تلل غواړي او

هغه ټخپله د اسلام د وسیع دائرې نه خارج شي نو علمائے اسلام (هغه ته په کافر وئیلو باندې)مجبور دي. څنګه چه مسلمان ته کافر وئیل کفر دې، دغه شان کافر ته مسلمان وئیل هم کفر دې."(1)

په صفحه ۲، ۳ باندې نور لیکي: "علماؤ ځومره احتیاط اوکړو خو چه کله په کلام کښې د تاویل ګنجائش پاتې نه شي او کفر د نمر په شان ښکاره شي نو بیا د کافر قرار کولو نه سِوا بله چاره نشته ؎

اگر بینم که نابینا و چاه است　　اگر خاموش بنشینم گناه است

---

**1** جناب اشرفعلی تهانوی فرمائي چه: "کفر کفر نه ګنړل هم کفر دې. آیا که څوك مسیلمه کذاب نبـی نه منی خو د هغه کفریه عقائدو ته کفر هم نه وائي نو آیا هغه کس ته به مسلمان وئیلې کیږي؟" (کمالات اشرفیه، ص۱۲۳)

جناب اشرفعلی تهانوی صاحب فرمائي: فقهاء علمائے دین مسلمانانو طرف ته د کفر نسبت کول دومره بد ګڼړي چه ترڅو پورې هغوئي ته څه ګنجائش ښکاري، د هغه وخته پورې هغوئي یو مسلمان ته هغه (کفر) نه منسوب کوي، نو د دې نه معلومیدې شي چه ټخپله د کفر عمل کول به څومره بد وي. پس مسلمانانو ته پکار دي چه په کوم قول یا فعل کښې د کفر د لرې احتمال او وَهم هم وي، د هغې نه ډیره زیاته ډډه اوکړي، ځکه چه د کفر نه لوئ د الله تعالیٰ په نِزد بل جُرم نشته. چنانچه د نصوص قطعیه نه ثابت دي چه الله تعالیٰ به ټول جُرمونه مُعاف کړي خو کفر نه مُعاف کوي. د دې نه اندازه کیدې شي چه هغه (یعني کفر) څومره شدید جرم دې او د هغې نه بچ کیدل څومره ضروري دي. (رساله امداد، ص۵۰، بابت ماه ذیقعده ۱۳۳٦هـ).

خو افسوس چه! د علمائے دیوبند ټخپله حال دا دې چه نورو ته نصیحت کوي، خو ټخپله په هغه نصیحت عمل نه کوي. هغوئي ته دا قرآني آیات یاد ساتل پکار دي اَتَأْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ. لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَالَا تَفْعَلُوْنَ. مفهوم ترجمة القرآن: آیا حکم کوئ تاسو نورو خلقو ته او هیروئ ځانونه خپل، تاسو ولې داسي خبرې کوئ چه کوئ ئې نه.

**ترجَمَه:** یعني زه وینم چه نابینا کوهي ته غوزیږي، او زه خاموشه پاتې شم نو ګنهګاریږم.

په داسې وخت کښ که علماء خاموشي اختیار کړي او مخلوق ګمراه شي نو د هغې وبال به په چا وي؟ آخر د علماؤ کار څه دې، چه هغوئي په کفر او اسلام کښ فرق هُم نه بیانوي نو نور به څه کوي؟''(1)

---

1 د لوستونکو د معلوماتو د پاره د تاویل په باره کښ لږ وضاحت ضروري ګڼړم. د تاویل معنٰی ده ''د ظاهرې معنی نه اړول او دویمه معنٰی اخستل'' (از فرہنگ عامرہ، مصدقه جناب حسین احمد ٹانڈوی مدنی) یعنی د یو لفظ د ظاهری معنٰی په ځائ دویمه معنٰی کول. علمائے دیوبند هم په خپلو تحریرونو کښ منلي دي چه ''لفظ صریح'' (په خپله معنٰی کښ ظاهر او ښکاره لفظ) کښ تاویل کول هیڅ کله جائز نه دي، یعني لفظِ صریح د تاویل قابل نه دې، چنانچه جناب محمد انور شاه کشمیري په خپل کتاب ''اِکفارُ المُلحدین'' (مطبوعه دار الکتب العلمیۃ پشاور) صفحه ۹۰ کښ لیکي چه په ''لفظِ صریح کښ د تاویل دعوٰی قبوله نه ده.'' (هغوئ په خپل دې کتاب کښ یو پوره باب په دې عنوان لیکلې دې چه په ''ضروریاتِ دین کښ تاویل نه شي قبلیدې'')

څنګه چه د ''ولدالحرام'' د الفاظو نه صرف ''حرام زاده''مراد وي، د لفظ ''حرام'' تاویل داسې کول چه ''ولد محترم'' یعني عزت والا ځوئ یا د عزّت پیدا شوې مراد نه شي اخستلې، ځکه چه په کلام کښ د صراحت باوجود چه کوم تاویل کیږي، هغه به فاسد وي او فاسد تاویل د کفر په شان دې. چنانچه انورشاه کشمیری د خپل دې کتاب په صفحه ۷۸ کښ لیکي چه ''فاسد تاویل'' د کفر په شان دې او په دې صفحه کښ لیکي چه په ''ضروریاتِ دِین کښ تاویل کول کفر نه دفع کوي.'' او اشرفعلی تهانوي وائي چه ''که د مفتي تاویل فی الواقع صحیح نه وي نو د هغه فتوٰی (کفر) وئیونکې د حقیقی کفر نه نه شي بچ کولې.'' (رساله الامداد، ص ۲۳، بابت ماہِ شوال ۱۳۳٦ھ)

ښکاره خبره ده که د یو مسلمان په کلام کښ د کفر یو کم سل فیصده صرف احتمال وي او صریح (یعنی ښکاره) کفر نه وي، نو په هغه کلام کښ د تاویل ګنجائش کیږي، خو

او په صفحه ۱۳ کښې لیکي: ”که د (مولانا احمد رضا) خان صاحب په نِزد ځیني علمائے دیوبند واقعي داسې وو څنګه چه هغوئي ګڼړلي وو نو په (مولانا احمد رضا)خان صاحب باندې د هغه (علمائے دیوبند) تکفیر فرض وو، که هغوئي دغه (علمائے دیوبند) ته کافر نه وئیلې نو پخپله به کافر شوې وې..... ځکه چه څوك کافر ته کافر نه وائي هغه پخپله کافر دې.“ (اشدالعذاب، ص١٤)

نور فرمائي: ټول علمائے دیوبند وائي چه د (مولانا احمد رضا) خان

---

چه د چا په کلام کښې د توهین مفهوم صریح [یعني ښکاره] وي نو په هغې کښې د څه وجهې د لحاظ کولو په وجه تاویل کول جائز نه دي.

اشرفعلی تهانوی صاحب فرمائي: ”د ایمان او کفر مجموعه کفر دې...... ګڼي په دُنیا کښې داسې یو کافِر نه شي پیدا کیدې چه د هغه هره عقیده کفریه وي. په کثرت سره کافر د صانع [یعني د الله] قائل دي، په کثرت سره د معاد [یعني د آخرت] قائل دي. او دا چه وائي چه که یو کم سل وجهې د کفر وي او یوه د ایمان وي نو د ایمان حکم به ورکولې کیږي، د دې نه مراد د یو کس د (غیر صریح) قول یا فعل هغه وجهې دي په هغې کښې دواړه احتماله وي څنګه چه د یو کلام ډیرې معنې کیدې شي.“

(حکیم الامت، ص ٢٦٤. مطبوعه ایم شمس الدین تاجران کتب، لاهور ١٩٦٧ء)

تهانوي صاحب نور فرمائي: ”په کوم کس کښې چه د کفر یوه وجه قطعي وي (هغه) ته به کافر وئیلې شي او حدیثونه د هغه کس په باره کښې دي په چا کښې چه څه وجه قطعي نه وي. او د دې مسئلې دا معنیٰ ده که یو امر قولي یا فعلي داسې وي چه د کفر او عدم کفر احتمال دواړه لري، که احتمال د کفر غالب او اکثر وي نو بیا به ئې هم تکفیر نه کیږي، داسې نه ده چه په تکفیرِ قطعي باندې به ئې هم تکفیر نه کیږی ځکه چه د کافِر دا معنیٰ نه ده چه په هغه کښې دِ ټولې وجهې د کفر جمع وي، ګڼي د چا کفر چه منصوص دې هغه به هم کافر نه وي.“

(فتاوٰی امدادیه، ج٤، ص١٢٠، مطبع مجتبائي، دهلي ١٣٤٦ھ)

صاحب دا حکم بالکل صحیح دې، څوك چه داسې اووائي (څنګه چه نانوتوي په "**تحذیرالناس**" کښې او تهانوي په "**حفظ الایمان**" کښې او انبیټهوي په "**براهین قاطعه**" کښې وئیلي دي) هغه کافر دې، مرتد دې، ملعون دې، راوړئ چه مونږه هم ستاسو په فتوٰی باندې دستخط اوکړو. بلکه داسې مرتدو ته چه څوك کافر نه وائي ، هغه پخپله کافر دې." (اشدالعذاب. ص۱۲، ۱۳)

هُم دا مرتضٰی حسن صاحب دربهنګي د خپل هم دې کتاب په صفحه۹ کښې لیکي چه "د انبیاء عَلَیْهِمُ السَّلام تعظیم کول او توهین نه کول په ضروریاتِ دین کښې شامل دي."

او د دیوبندیانو یو مشهور عالم محمد انورشاه کشمیری په خپل کتاب "**اِکفارُالمُلحِدِین**" (مطبوعه اکوړه ختك. نوشهره) صفحه ۱۰۸ کښې لیکي:

"علمائے اسلام فرمائیلي دي چه د انبیاء عَلَیْهِمُ السَّلام په شان کښې جرأت او دلیری، ګستاخی او بې ادبي کفر دې اګرچه وئیونکي د توهین اراده نه وي کړي." یعني د هغه نیت د توهین نه هم وي، بیا هم د بې ادبئ الفاظ وئیل کفر دې.

**محترمو لوستونکو!** د الله تعالٰی د نبیانو بې ادبي کوونکو په باره کښې تاسو د علمائے دیوبند ارشادات اوکتل، اوس د دیوبندیانو د حکیم الامَّت اشرفعلی تهانوي نه د بې ادبئ سزا هم واورئ.

تهانوی صاحب د خپل کتاب "**زادُالسَّعِید**" (مطبوعه مطبع انتظامی. کان پور. ۱۳۲۲ھ) په صفحه ۱۱ کښې لیکي: "د قرآن مجید د اشارې نه معلومیږي

چه د حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ په اوچت شان کښې په یوه ګستاخۍ کولو (نَعُوْذُ بِاللهِ منها) په هغه کس باندې د الله تَعَالیٰ د طرف نه لس لعنتونه نازلیږي، چنانچه د ولید بن مغیره په حق کښې الله تَعَالیٰ په سزا کښې دا لس کلمات ارشاد فرمائي.''[۱- ډېر زیات په دروغه قَسمونه خوړلو والا ۲. حقیره ۳. ذلیله ٤. نکته چیني کولو والا ٥. چغلخور ٦. د نیکۍ د کارونو نه منع کولو والا ۷. د حد نه تجاوز کولو والا ۸ ګنهګار ۹. نخرې کولو والا ۱۰. حرامي]

**محترمو لوستونکو!** پخپله تهانوي او هغه ټول علمائے دیوبند کومو چه د رسولُ الله صَلَّی اللهُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ په شان کښې یوه نه ډېرې ګستاخۍ کړې دي، پخپله د تهانوي د ارشاد مطابق، په شانِ رسالت کښې د هرې ګستاخۍ په وجه په هغه دیوبندیانو وهابیانو باندې د الله تَعَالیٰ د طرف نه لس لس لعنتونه نازلیدل یقیني دي او دا هم چه ګستاخِ رسول ته د ولید بن مغیره پیروکار او هَم نوا وئیل کیدې شي. د ''**جوہانس برگ سے بریلی**'' مصنِّف او د هغه هَم نوا دِ اووائي چه هغه د دې تفصیلي وضاحت نه پس هم کفریه عبارتونه کفریه او د هغې وئیونکي کافر ګڼړي او د الله تَعَالیٰ د لعنتونو نه بچ کیدل غواړي یا که هغه کفریه عبارتونو ته صحیح وائي او د خپل ځان د پاره د دِین او دُنیا تباهي او دائمي عذاب جمع کول غواړي؟

**محترمو لوستونکو!** د ''**جوہانس برگ سے بریلی**'' مصنف او د دیوبندیانو ټول مبلغین او پیروکار، په مونږه اهلِسُنَّت و جماعت باندې دا بهتان

لکوي چه امام اهلسُنَّت اعلیٰ حضرت مولانا شاه اِمام احمد رضا خان بریلوي رحمۃ اللہ علیہ د مسلمانانو د کافر کولو مشین ګڼ لګولې وو. د دیوبندیانو، وهابیانو تبلیغیانو د علماء په نوم یادیدونکې مشران، خپلو عوامو ته حقیقت نه ښائي، دا خلق په مونږ اهلِسُنَّت و جماعت پورې د ځان نه جوړې کړې د دروغو خبرې خپلو عوامو ته بیانوي، عوام د حقیقت نه خبر نه دې او داسې خبرې چه اوري نو زمونږ د اهلسُنَّت و جماعت په باره کښې بدګمانه کیږي. په دې وجه ضروري ګڼړم چه عوامو ته حقیقت وړاندې کړم، او هغوئي خبر شي چه د دیوبندي وهابي ډلې دا مبلغین څومره دروغژن او غلط خلق دي.

**محترمو لوستونکو!** دا اولوستل چه اعلیٰ حضرت بریلوی رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ چه د دیوبند د یو څو علماء په کومو ګستاخانه کفریه عبارتونو باندې د هر قِسمه حُجَّت پوره کولو نه پس د کفر فتوٰی ورکړې وه، هغه ټول عبارتونه بخپله د علمائے دیوبند په نِزد هم کفریه دي. د جناب مُرتضیٰ حسن دربهنګي نه علاوه د دیوبند د یو غټ عالم شبیر احمد عثمانی وراره جناب عامر عثماني هم دیوبند د ماهنامه ''تجَلِّي''د فروري مارچ، ۱۹۵۷ء په شماره کښې د علمائے دیوبند کفریه عبارتونه کفریه ثابت کړي دي او د دیوبند د مؤقف مخالَفت ئې کړې دې. په تِیرو ورځو کښې په عالَمِ اسلام کښې د شیطان رشدي د کتاب ''شیطانی آیات'' خلاف زبردست احتجاج اوشو. دیوبندیانو وهابیانو هم د خپل امام

ابن تیمیه کتاب ''الصَّارِمُ المَسْلُوْل'' په حواله ګستاخ رسول کافر او مرتد قرار کړو او د دې خبرې ثبوت ئې پیش کړو چه په دې خبره باندې د ټول اُمَّتِ مسلمه اجماع ده چه ګستاخِ رسول په مُتَّفِقه طور کافر و مرتد او واجب القتل دې.

چنانچه دا ثابته شوه چه امام اهلِسُنَّت مولانا شاه احمد رضا خان بریلوي رَحمَۃُاللّٰہِ عَلَیْه کله هُم یو مسلمان ته کافر نه دې وئیلې. او نه ئې مسلمانانو ته د کافر وئیلو مشین لګولې وو بلکه هغوئي د کفریه عقائدو لرلو والؤ او د کفریه عبارتونو لیکو والؤ باندې د کفر فتوٰی د هر قِسمه حُجَّت پوره کولو نه پس، د اجماعِ اُمَّت مطابق جاري کړه او په کومو کفریه عبارتونو ئې چه فتوٰی جاري کړې وه هغه عبارتونه علمائے دیوبند هم پخپله کفریه تسلیم کړل.

د **لوستونکو په خدمت کښې عرض دې** چه پخپله علمائے دیوبند د خپل مسلك په علماؤ د کفر فتوې ورکړې دې، څنګه چه(دراولپنډۍ) د مشهور دیوبندي عالِم غُلام الله خان، د ابوالاعلٰی مودودی او د غلام احمد پرویز په باره کښې د هغوئي فتوې مشهورې دې، البته د خپلو یو څو علماؤ د صریح [یعني ښکاره] کفر خلاف فتوې نه ورکول بلکه د هغوئي صریح کفر اسلام ثابتول هم د هغوئي عادت دې او سیاسي فتوې جاري کول او هغه بدلوَل رابدلول خو د هغوئي کار دې، هُم دا نه بلکه د شبلی نعمانی او حمیدالدین فراهي په باره کښې د اشرفعلي تهانوي

د طرف نه د کفر د فتوې ذِکر به زما په کتاب "**د دیوبند نه بریلي ته**" کښې لوستونکو کتلي وي، په دې وجه د دیوبندی وهابي ډلې دا وینا چه د کفر فتوې صرف د بریلي علمائے اهل سُنَّت ورکړې دي، تش بُهتان دې. علمائے اهل سُنَّت کله هم یو مسلمان ته کافر نه دې وئیلې، د دې برخلاف د دیوبندی وهابی تبلیغی ډلې حال هُم اوګورئ چه د دیوبندی وهابی ډلې بنیادي مقصد رښتیني مسلمانان مُشرِك ثابتول دي.[1]

**محترمو لوستونکو**! دا دیوبندي وهابي تبلیغي علماء او مُبَلِّغین د "یارسولَ الله وئیلو والؤ رښتیني مسلمانانو ته مشرك وائي." دا خلق د الله تعالیٰ د خوږ او آخِري رسول ﷺ میلاد شریف نمانځلو والؤ ته مشرِك وائي. کوم خلق چه د قرآنِ کریم او احادیثو مطابق د الله تعالیٰ د نبیانو او د نیازمندو بندګانو د پاره، د الله ورکړې شوې علم غیب مني، دا خلق هغوئي ته مشرِك وائي. کوم خلق چه رسولُ الله ﷺ هیڅ کله جسماني طور نه بلکه روحاني طور حاضر و ناظر مني، دا خلق هغوئي ته هم مُشرِك وائي. کوم خلق چه د ایصال ثواب د پاره د الله تعالیٰ

1 د محترمو لوستونکو د خبرولو د پاره دا وضاحت ضروري دې چه هر مُشرك بیشکه کافِر دې. هر کافِر مشرك نه وي خو هر مشرِك ضرور کافِر دې. ان شاء الله دا خادمِ اهلسُنَّت به ډېر زر د دین اسلام د بنیادي عقائدو په باره کښې خپل کتاب "*میراوِیْن*" د لوستونکو په خِدمت کښې وړاندې کړي چه په هغې کښې به د کفر و شرك په باره کښې د قرآن وسُنَّت مطابق ټول تفصیل موجود وي. بیا هم د شرك په موضوع باندې څه نه څه تفصیل په راروانو صفحو کښې اوګورئ.

د نيازمندو بندګانو عُرس کوي، دا خلق هغوئي ته هم مُشرِك وائي.
کوم خلق چه د الله تعالیٰ د نيازمندو بندګانو د مزاراتو [يعني قبرونو] زيارتونو ته ځي او د اولياءُ الله مزارات يا د مزار غلاف د مَحَبَّت په وجه ښکل کړي، دا خلق هغوئی ته هم مشرِك وائي او د هغه خلقو سره نکاح کول حرام ګڼړي. څوك چه د الله نبيان او وليان د الله تَعَالٰی په ورکړه خپل مددګار ګڼړي، دا خلق هغوئي ته مشرِك وائي. څوك چه د حضرت محبوبِ سُبحانی سيِّدُنا غوثِ اعظم رَحمَۃُاللّٰہِعَلَیہ د ايصالِ ثواب د پاره يولسمه کوي، دا خلق هغوئي ته مشرِك وائي. کوم خلق چه مستقل او حقيقی مُتَصَرِّف [يعني اختيار لرونکي] صرف الله تعالیٰ مني او د الله تَعَالٰی په ورکړه د الله د نيازمندو بندګانو د تصَرُّف قائل دي، دا خلق هغوئي ته مشرِك وائي. کوم خلق چه حُضُور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَسَلَّم ته عام بشر نه وائي بلکه افضل البشر ئې مني او د الله نور ئې مني، دا خلق هغوئي ته هم مشرِك وائي......

**محترمو لوستونکو!** ديوبندي وهابي ډله چه په کومو کومو خبرو باندې رښتيني مسلمانانو ته مشرك وائي، که د هغې فهرست ليکم نو هر مسلمان د هغه خبرو مطابق مشرك ګرځي. بيا هم د دې فهرست نه به تاسو په حقيقت پوهه شئ چه اعلیٰ حضرت بريلوی رَحمَۃُاللّٰہِعَلَیہصرف په هغه مسئله باندې په يو څو علمائے ديوبند باندې د کفر فتویٰ لګولي وه، په کومه مسئله چه د ټول اُمَّتِ مسلمه اجماع ده. خو ديوبنديان

وهابيان تبليغيان چه په کومو خبرو باندې رښتيني مسلمانانو ته مشرك وائي، په هغې باندې د ټول اُمَّت اجماع خو لا پريږده، پخپله د ديوبنديانو، وهابيانو تبليغيانو هم پرې اِجماع نشته، بلکه په دې خبرو باندې رښتيني مسلمانانو ته مشرك وئيلو والا دې ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو د علماؤ د کتابونو نه، دا ټولې خبرې د اهلِسُنَّت و جماعت د صحيح عقائدو مطابق ثابتې دي. ځکه چه د قرآن و سُنَّت نه ثابتو صحيح خبرو ته دا ديوبنديان وهابيان تبليغيان (په خپل ګمان کښې) غلطې خو وائي خو دا صحيح خبرې غلطې نه شي ثابتولې او صحيح ته د غلطو وئيلو عذاب د ځان د پاره جمع کوي.

**محترمو لوستونکو**! په تاسو دا حقيقت ښه واضحه شو چه د رښتيني مسلمانانو د تکفير مشين ګن اهلسُنَّت و جماعت بالکل نه دې لګولې بلکه د ديوبندي وهابي ډلې مبلغينو لګولې دې او شپه او ورځ دا خلق د ټولې دُنيا رښتيني مسلمانانو ته کافر او مشرك وائي. ځکه زمونږه دا وينا حق ده چه د ديوبندي وهابي تبليغي ډلې مقصد دراصل رښتيني مسلمانانو ته کافر وئيل دي. اعلٰی حضرت رَحمَۃُاللہِعَلَیہ خو د ديوبنديانو وهابيانو علماؤ کفريه عبارتونو باندې شرعی فتوٰی جاري کړې وه او د دې علمائے ديوبند کافر کيدل ئې ''بيان کړي وو'' خو دا ديوبنديان وهابيان تبليغيان د خپلو مشرانو د کفريه عبارتونو تائيد کوي او پخپله هم کافِر جوړيږي او نور خلق هم خپل ملګري جوړوي او کافران

"کوي ئې." الله پاك دِ مونږه د دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو نه او د دوئي د شر نه په خپل حفاظت کښې اوساتي.

۞ د جوہانس برگ سے بریلی مصنف په دریو حصّو کښې یو څو اعتراضونه بیا بیا بیان کړي دي. د هغه به دا خیال وي چه د جنوبي افریقه او د هندوستان او پاکستان نه بَهر (د بیروني دُنیا) خلقو ته خو د احوالو حقیقت معلوم نه دې او عامو خلقو ته د تحقیقاتو (خاص طور د داسې مذهبي مُعامَلاتو) څه شوق نه وي، لِهٰذا د عوام د دوکه کولو کوشش ئې کړې دې چه عوام د اعلیٰ حضرت امام اهلِسُنَّت مولانا شاه احمد رضا خان بریلوی رحمة الله علیه خلاف لږ زر غلط خیال قائم کړي، حالانکه حقیقت پټول او سپین ته تور وئیل پخپله د داسې کولو والؤ د پاره نقصاني ثابتیږي، خو د چا چه بنیاد په دروغو قائم وي هغه د الله تعالیٰ نه کله هم نه یَریږي. څوك چه خپلې ککړې لَمَن ته نه ګوري هغه د بل صفا سُتره لَمَنې ته داغداره وائي.

د اعلیٰ حضرت امام اهلِسُنَّت مولانا شاه احمد رضاخان بریلوی رحمة الله علیه د دیني استقامت، عشقِ رسولُ الله (ﷺ)، فِقهي مرتبې او علمي عظمت و کمال په باره کښې لږ د علمائے دیوبند رائے هم اوګورئ:

جناب اشرفعلی تهانوي وائي: "زما په زړه کښې د احمد رضا د پاره بے حده احترام دې، هغه مونږ ته کافِر وائي خو د عشقِ رسول په وجه ئې وائي، څه په بل غرض خو ئې نه وائي." (چٹان، لاهور۔ ۲۳ اپریل ۱۹۶۳ء)

"خورشید علی خان ایس ډي او (نهر) وائي چه د مولانا احمد رضا خان بریلوی په وفات باندې د بریلی نه تهانوي ته د یو مُرید تار راغې او ما ورته اولوستو. تهانوي اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رٰجِعُوْن اووئیل، په موجودو کسانو کښې یو کس اووئیل چه مولانا بریلوی تاسو ته کافِر وئیلی دي او تاسو د هغه په مرګ باندې اِنَّا لِلّٰهِ وائې. تهانوی اووئیل: "مولوی احمد رضا خان لوئي عالِم او په عشقِ رسول کښې ډوب وو. هغوئي چه زما د عِبارت کوم مطلب اخذ کړو او د هغې په وجه ئې چه څه اولیکل هغه صحیح وو. که زه د هغوئي په ځائ وې او هغوئي زما په ځائ وې او د هغوئي د قلم نه دا الفاظ وتلي وې، نو د هغه مطلب په وجه کوم چه ترې هغوئي اخستې وو، ما به هم د هغه تکفیر کولو."

(مولانا کوثر نیازی هم د مفتی شفیع صاحب دیوبندي د خُلې نه اوریدلي دا واقعه په خپل کالَم "مشاہدات وتاثرات" (روزنامہ جنگ) کښې لیکلي وه)

ابوالاعلیٰ مودودی صاحب وائي: "د مولانا احمد رضا خان د علم و فضل زما په زړه کښې ډیر زیات احترام دې. واقعةً هغوئي په علوم دینی باندې ډیر نظر ساتلو او د هغوئي د فضیلت اعتراف هغه خلقو هم کړې دې، څوك چه د هغوئي سره اختلاف ساتي. د زباني بحث کولو په وجه چه کومې جګړې پیدا شوي وې، هغه په اصل کښې د هغوئي په علمي کمالاتو او دینی خدماتو باندې د پرده اچولو سبب جوړې شوې."

(ہفت روزہ شہاب، لاہور۔ ۲۵ نومبر ۱۹۶۲ء)

جناب سید سُلیمان ندوي وائي: ”دې حقیر د جناب مولانا احمد رضا خان صاحب مرحوم یو څو کتابونه اوکتل نو حیران پاتې شوم، چه واقعی دا د مولانا بریلوی صاحب مرحوم [کتابونه] دي، چه د هغوئي په باره کښې ما د پرون ورځې پورې دا خبره اوریدله چه هغه صرف د بدعتیانو ترجَمان دې او صرف د یو څو فروعی مسائلو پورې محدود دې، خو نن را ته معلومه شوه چه نه، هیڅ کله نه، دا د بدعتیانو نقیب نه دې بلکه دا خو د عالِمِ اسلام اسکالر او شاهکار معلومیږي. د مولانا (احمد رضا) مرحوم په تحریرونو کښې چه څومره جوروالې موندلې کیږي، دومره جور والې خو زما د استاذ جناب مولانا شبلی نعمانی صاحب او د حضرت حکیم الأُمَّت مولانا اشرفعلی تهانوي او د مولانا محمود الحسن صاحب دیوبندي او د حضرت مولانا شیخ التفسیر علامه شبیر احمد عثمانی په کتابونو کښې هم نشته، څومره چه د مولانا بریلوی په تحریرونو کښې دې.“ (ماه نامه ”ندوه“ ص ۱۷، اگست ۱۹۱۳ء)

د ”سیرةُ النَّبِـی“ نومې مشهور کتاب لیکونکې، جناب شبلی نعمانی فرمائي: ”مولوی احمد رضا خان صاحب بریلوی په خپلو عقائدو کښې سخت مُتَشَدَّد دې، خو د دې باوجود د مولانا صاحب علمي مرتبه دومره اوچته ده چه د دې دور ټول عالِمِ دین د هغوئي (مولانا احمد رضاخان صاحب) په مقابَله کښې د یو زرې حیثِیَّت هم نه لري. دې حقیر هم د هغوئی (فاضل بریلوی) ډیر کتابونه، چه په هغې کښې

احکام شریعت او نور کتابونه هم شامل دي او د مولانا په سرپرستۍ
کښې یوه ماهوار رساله ”الرضا“ چه د بریلی نه اوځي، د هغې یو څو
قسطونه، په ډېر غور سره کتلي دي، په هغې کښې ډېر اوچت اوچت
مضامین شائع کیږي.“ (رساله ندوه، ص۱۷ اکتوبر ۱۹٦٤ء)

مشهور سیاسي او مذهبی لیډر مولانا محمد علـی جوهر فرمائي:
”د دې دور مشهور عالِم دین جناب مولانا احمد رضا خان صاحب
واقعی یو لوئي مسلمان راهنما دې، مونږه په ځینو خبرو باندې د [هغوئي
سره د] اختلاف باوجود، د هغوئي د لوئي شخصیت او دینی راهنما کیدو
اعتراف په دې وجه کوو چه هغوئي د دې دور د ټولو نه غټ مُحَقِّق،
مُصَنِّف، ادیب، شاعر، مُدَقِّق او مردِ حق دې. بیشکه د داسي هستیانو
وجود مسعود زمونږ د پاره د شُکر گُزارۍ خبره ده.“ (روزنامه خلافت، ص٤، بمبئ)

جناب محمد انور شاه کشمیری (صدر مدرس دارالعلوم دیوبند) وائي:
”چه کله بنده [یعني ما] د تِرمِذی شریف او نورو کتابونو شرحې
لیکلې، نو د ضرورت مطابق د جُزئیاتو کتلو ضرورت پیښ شو، ما د
شیعه حضراتو، اهل حدیثو او دیوبندیانو حضراتو کتابونه اوکتل خو
ذهن مې مطمئن نه شو. آخرکار د یو دوست په مشوره مې د مولانا
احمد رضاخان بریلوي کتابونه اوکتل نو زما زړه مطمئن شو چه اوس
زه په ښه طریقه د احادیثو شرحې بې یرې لیکلې شم. واقعی د بریلوی
حضراتو د ټولو نه غټ عالِم مولانا احمد رضاخان صاحب تحریرونه

خالص او مضبوط دي چه د هغې د ليدلو نه دا معلوميږي چه دا مولانا احمد رضاخان يو زبردست عالِمِ دِين او فقيه دې.“

(ماه نامه هادی، ص۲۱ ،دیوبند، جمادی الاول ۱۳۳۰ھ)

د دارُالعلوم ديوبند شيخ الادب، جناب اعزاز علی فرمائي: ”دا اَحقر د دې خبرې په تسليمَوَلو مجبوره دې چه په دې دور کښ که څوك مُحَقِّق او عالِمِ دين شته دې نو هغه احمد رضاخان بريلوی دې ځکه چه ما مولانا احمد رضاخان، چه مونږه د نن ورځې پورې هغه ته کافِر، بدعتي او مشرِك وئيلو، ډير زيات وَسِيعُ النَّظر، اوچت خيال او اوچت هِمَّت والا عالِمِ دين او خاوند د فکرونظر موندلې دې. د هغوئي (فاضل بريلوی) دلائل د قرآن و سنَّت خلاف نه دي بلکه مطابق دي، لِهٰذا زه تاسو ته مشوره درکووم چه که تاسو ته په کومه يوه مسئله کښ د څه قِسمه مشکلات پيښ شي نو تاسو بريلي ته لاړ شئ او د مولانا احمد رضاخان صاحب بريلوی نه د هغې تحقيق اوکړئ.“

(رساله نور، ص۴۰ تهانه بهون، شوال المُکرَّم ۱۳۴۲ھ)

جستِس ملك غلام علی صاحب فرمائي: ”حقيقت دا دې چه د مولانا احمد رضاخان صاحب په باره کښ تر اوسه پورې مونږه په سخته غلط فهمئ کښ اخته وو. د هغوئي د ځيني تصانيفو او فتاوٰی د مطالعې نه پس دې نتيجې ته اورسيدم چه کوم د علم جوَر والې ما د هغوئي په تحريرونو کښ ليدلې دې هغه په ډيرو کمو علماؤ

کښې موندلې کیږي او د الله او د رسول عشق خو د هغوئي په یوه یوه کرښه کښې موجود دې." (ارمغان حرم، ص١٤، لکھنؤ)

جناب معینُ الدین ندوی فرمائي:"مولانا احمد رضا خان صاحب بریلوی مرحوم د دې دور په صاحِبِ علم و نظر صاحبانو مصنِّفینو علماؤ کښې یو وو، په دینی علومو خاص طور په فقه و حدیث باندې د هغوئي نظر وسیع او مضبوط وو. مولانا چه په کوم باریك نظر او تحقیق سره د علماؤ د سوالونو جوابونه لیکلي دي، د هغې نه د هغوئي جامعِیَّت، علمی بصیرت، قرآنی اِستحضار، دیانت او طباعي پوره پوره اندازه کیږي. د هغوئي عالِمَانه او مُحَقِّقانه فتاوې د مخالِف او موافق هرې طبقې د لوستلو لائق دي." (ماہنامہ معارف اعظم گڑھ شمارہ ستمبر ١٩٤٩ء)

مفتي انتظامُ الله شهابی فرمائي: "حضرت مولانا احمد رضاخان مرحوم د دې زمانې د ټولو نه اوچت عالِم وو. په فقهې جزئیاتو کښې ورته ډیر مهارت حاصل وو. قاموس الکتب اردو، کومه چه د ډاکټر مولوی عبدالحق په نګرانئ کښې مرتب شوي وه، په هغې کښې ئې د مولانا (احمد رضا) د کتابونو ذِکر کړې دې او په هغې ئې نوټ هم لیکلي دي (د مولانا احمد رضا خان لیکلي) ترجَمه قرآن مجید او فتاوٰی رضویه وغیره مې لوستلي دي. د مولانا نعتیه کلام ډیر زیات اثر لرونکې دې. زما دوست ډاکټر سراج الحق پي ایچ ډی خو د مولانا د کلام عاشق وو او مولانا به ئې د عاشقِ رسول په نوم یادولو." مولانا په دیني

معلوماتو ډېر جوړ نظر ساتلو.

علامه نیاز فتح پوری فرمائي: ”مولانا احمد رضا مې لیدلې دې، هغوئي د ډېر زیات علم او فضل مالك وو، د هغوئي مطالعه ډېره زیاته وسیع هم وه او جوره هم وه، د هغوئي د علم نُور د هغوئي د مخ او بشرې نه معلومیدلو. د ډېرې عاجزئ او خاکسارئ باوجود د هغوئي د ښکلي مخ نه د عجیبه حده پورې رُعب ظاهریدو.“

جناب جعفر شاه پلواری فرمائي: ”جناب (مولانا احمد رضا) فاضل بریلوی، په علوم اسلامیه، تفسیر، حدیث او فِقه کښې مهارت لرلو. په منطق، فلسفه او ریاضئ کښې هم ورته کمال حاصل وو، د عشق رسول (ﷺ) سره سره د ادب رسول (ﷺ) نه دومره ډك وو چه لږه بے ادبي ئې هم نه شوه برداشت کولې، که د څه بے ادبئ معقول توجیه او تاویل به نه جوړیدو نو د څه رعایت نه بغیر او د لویو نه لوئ شخصیت پرواه کولو بغیر به ئې بې یَرې فتوٰی لګوله.... هغوئي ته د نبـی (ﷺ) په مَحَبَّت کښې دومره زیات مقام حاصل وو چه د زیاتوالي پیدا کیدل لرې نه وو. د ادب تقاضې هغوئي دومره حساس جوړ کړې وو او چه کله په دې احساس کښې ډېر زیات نزاکت پیدا شي نو په طبیعت کښې د سختئ پیدا کیدل د حیرانتیا خبره نه وي. که څیني د بے ادبئ کلمات په توحید باندې محمول کیدې شي نو تکفیر کول [یعني په هغې باندې د کفر فتوٰی لګول] هم د محبت او ادب

تقاضا قرار کیدي شي، په دې وجه زه فاضل بریلوی مولانا احمد رضا خان رحمۃ اللہ تعالٰی علیہ په دې معامَله کښې معذوره ګڼړم، خو دا حق صرف د هغه کس د پاره خاص ګڼړم څوك چه د فاضِل موصوف (مولانا احمد رضا) په شان **فَنَا فِي الْحُبِ وَالاَدَب** وي." [یعني د نبـی کریم ﷺ په مینه، محبت او ادب کښې فنا وي]

جناب شبیر احمد عثمانی فرمائي: "مولانا احمد رضا خان ته د تکفیر [یعني په بې ادبو دیوبندیانو باندې د کفر فتوٰی لګولو] په جُرم کښې بد وئیل ډیره زیاته بده خبره ده ځکه چه هغوئي ډیر لوئ عالِم دِین او اوچت محَقِّق وو. د مولانا احمد رضا خان وفات د عالَمِ اسلام د پاره ډیر غټ غم دې چه هغه نظر انداز کیدې نه شي."

(ماهٔ هادی، ص۲۱ دیوبند، ذوالحجة ۱۳۶۹ھ)

د جناب محمد یوسف بنوری پلار جناب زکریا شاه بنوری فرمائي: "که الله تعالٰی په هندوستان کښې (مولانا) احمد رضا بریلوی نه وې پیدا کړې نو په هندوستان کښې به حنفِیَّت ختم شوې وې."

وهابی عالِم جناب فخرالدین، صدر مدرس مراد آبادی فرمائي: "د مولانا احمد رضا خان سره زمونږه اختلاف په خپل ځائ وو خو مونږه د هغوئي په خدمت ډیر نازیږو. غیرمسلمو ته مونږه نن په ډیر فخر سره دا وئیلې شو چه د دُنیا ټول علمونه که په یو ذات کښې جمع کیدې شي نو هغه د مسلمان ذات کیدې شي. اوګورئ په مسلمانانو کښې

د مولوی احمد رضا خان شخصيت نن هم موجود دې چه د دنيا په ټولو علمونو کښ يوشان مهارت لري. هائے افسوس چه نن د هغوئي د تللو [يعني وفات کيدو] سره زمونږه دا فخر هم رخصت شو."

جناب ابوالحسن علی ندوی فرمائي: "په فِقهٔ حنَفی او د هغې په جزئياتو باندې چه کوم مهارت هغوئي (يعني فاضِلِ بريلوی) ته حاصل وو، په دې زمانه کښ د هغې مثال نشته دې."(نزهة الخواطر، ج۸، ص٤١، مطبوعه دکن)

د مودودي ډلې مشهور صحافی جناب منظوراُلحق فرمائي: "چه کله مونږه د اِمام موصُوف (فاضل بريلوی) د کتابونو مُطالَعه کوو نو معلوميږي چه دا کس د خپل علمی فضيلت او خپل زيات ذهانت او لوئ مقام په وجه په نورو عالِمَانو باندې يواځې اوچت دې."

(ماه نامه حجاز جديد، ص ٥٤، نئ دہلی، جنوری ١٩٧٩ء)

(د روزنامه جنگ، لاهور ٣ اکتوبر١٩٩٠ء په اشاعت کښ د مولانا (حيات محمد) کوثر نيازي د اعلٰی حضرت فاضل بريلوی رَحمَةُاللهِعَلَيه په باره کښ د علمائے ديوبند په بيانونو باندې مشتمل مضمون هم د دې حقيقت اعتراف دې چه اعلٰی حضرت فاضل بريلوی بيشکه رښتينې عاشقِ رسول او د دِينِ اسلام يکتا عالِم او د ملت مُحسِن وو.)

د نورور شخصياتو د تاثراتو معلوميدو د پاره اوګورئ.

خيابانِ رضا، امام احمد رضا، ارباب دانش کی نظر ميں، فقيہ اسلام، المِيزان بمبئ (امام احمد رضا نمبر) ، جہانِ رضا، مقالاتِ يومِ رضا (حصّہ دوم) ، لاہور۔

٭ امامِ اهلسنت اعلیٰ حضرت مولانا شاه احمد رضا خان بریلوی رَحمۃُاللہِ عَلَیْہ د زرو (۱۰۰۰) نه زیاتو کتابونو مصنِّف، د پینځه پنځوسو نه زیاتو مختلفو علمونو او فنونو1 باندې کامِل دسترس لرونکې، د زمانې د معزز شخصیت او ورسره ورسره باکماله شاعِر هم وو. هغوئي د ټولو علمونو او فنونو په ذریعه د دِین خدمت کړې دې. د هغوئي شاعری په خپلو او پرَدو دواړو کښې ډیره مقبوله ده. د هغوئي د شاعرئ د

---

1 اعلیٰ حضرت فاضل بریلوي رَحمۃُاللہِ عَلَیْہ چه په کومو علومو او فنونو باندې د الله تعالیٰ په فضل سره مهارت لرلو، په هغه علومو او فنونو باندې د هغوئي ډیر تصنیفونه لیك دي، د هغې څه تفصیل دا دې:

علم القرآن، قراءة، تجوید، تفسیر، اصولِ تفسیر، حدیث، اسانیدِحدیث، اصول حدیث، اسماء رجال، جرح و تعدیل، تخریجِ احادیث، لغتِ حدیث، علمُ الانساب، تنقیدات، ردات، فقه، اصولِ فقه، رسم المُفتی، علم العقائد، علم المَعانی، علم البیان، علم الکلام، منطق، فرائض، فضائل، بدیع، فلسفه، لغت، قانون، اخلاق، عرف و مُحاوره، ریاضی، حساب، جبرومقابَله، میراث، صرف، نحو، سیر، تاریخ، جغرافیه، سیاسیات، شماریات، معدنیات، طبیعیات، اقتصادیات، معاشیات، ارضیات، فلکیات، هیئت، کیمیا، زیجات، طب، توقیت، اوفاق، تکسیر، رمل، جفر، نجوم، لوګارثمات، مثلث کروي، مثلث مسطح، مربعات، زائرچه وزائچه، ادب وانشاء، نثرونظم (فارسی، هندی)، ماحولیات، اوزان، تعبیر، هندسه، حساب سینی، عروض، بلاغت، استخراج تاریخ، فنِ تاریخ، اعداد، ارثماطبقی، اکر، رسم الخط (نستعلیق، نسخ، شکسته)، نفسیات، موسمیات، تعلیقات، حاشیه نګاري، علم الاموال، عمرانیات، صحافت، سلوك، تصوُّف، مناظره ومنایا، تقابلِ ادیان، جدل، صوتیات، لسانیات......[وغیره]

مجموعې نوم ''حدایق بخشش'' دې چه د هغې دوه مستندې حِصّې دي.

د اعلیٰ حضرت فاضلِ بریلوی رَحۡمَۃُاللّٰہِعَلَیۡہ د وفات نه پس د هغوئي يو عقيدت مند مولانا محمد محبوب علی خان صاحِب د دوستانو په مدد سره د اعلیٰ حضرت غير مطبوعه کلام جمع کړو. په مختلفو ښارونو او لرې او نِزدې ځائيونو کښې چه د چا سره د هغوئي غير مطبوعه تحرير وو، د هغې تر لاسه کيدو کوشش اوکړې شو، بيا هم د دې غير مطبوعه کلام په باره کښې په پوره يقين سره څه نه شي وئيل کيدې چه واقعی دا ټول، د اعلیٰ حضرت فاضل بریلوی کلام دې او که نه، د اعلیٰ حضرت مستند کلام هغه دې کوم چه د هغوئي په موجودګئ کښې په دوو حصّو کښې شائع شوې وو، په دريمه حِصّه (باقيات رضا) کښې د شامِل کلام ټوله ذمه واري د مولانا محبوب علی خان صاحب وه خو افسوس چه هغوئي پخپله د تحقيق و تصديق نه کولو سره سره، پخپله د هغې پروف ريډنګ (مسوده بينی) هم اُو نه کړې شو، بله دا چه د تقسيمِ هندوستان نه مخکښې چاپ خانے د مسلمانانو په مِلك نه د نشت برابر وې، څنګه چه اوس هم په غيرمسلمه ملکونو کښې د مسلمانانو حالات دي. غير مسلم چاپ خانے واله هم څه خيال اُونه کړو او په غلط ترتيب سره څه شعرونه شائع شو. د دوستانو وينا وه چه يقيناً دا د شرپسندو شرارت دې. چنانچه مولانا محبوب علی خان ډير زر په ټول ملك کښې د صحيح

واقعي احوال خواره کړل او توبه نامه ئې هم چاپ کړه او په پوره ملك کښې ئې خوره کړه. د پوسټرو، پمفلټو، اخبارونو او فتاوٰی په صورت کښې خنګه د مولانا محبوب علی خان د طرف نه تفصیل او توبه نامه شائع شوه نو دا اِعتراض ختم شو.1

مولانا محبوب علی خان چا چه د کلامِ اعلیٰ حضرت دریمه حصّه مُرتَّب کړي وه، هغه پخپله وائي چه "کاتِب او د نابهه اسټیم پریس2 مالِك دواړه بدمذهبه وو. هغوئي کاتب او پریس والؤ ته وئیلي وو چه دا قصیده پوره په لاس رانغله او دا شعرونه ترتیب وار نه دي. (د شعرونو مضمون جُدا جُدا دې) لِهٰذا دا شعرونه به په یوځائ کښې نه شائع کیږي او لفظِ "علٰیحده [یعني جُدا]"به په ښکاره لیك د دې شعرونو نه مخکښې لیکل کیږي او دا شعرونه چه به په قصیده کښې په کوم ترتیب سره لګولې کیږي هغه ئې ورته هم اوښودل،خو کاتب

---

**1** په ماهنامه سنی، لکهنؤ بابت ماه ذوالحجة ۱۳۷٤هجری کښې مولانا محبوب علی خان شائع شوې تفصیلي بیان او توبه نامه کتلې شئ. د دهلی د مشهور فتح پوری جُمات شاهي امام او خطیب او د هندوستان مشهور عِلمی شخصیت مفتی اعظم محمد مظهرالله رَحمَةُاللهِ عَلَيه مفَصَّله فتوٰی، په ۱۹۵۵ء کښې د "دارالافتاء دہلی کا قرآنی فیصلہ" په نوم د یوې کتابچې په صورت کښې شائع کړې شوه او په پوره ملك کښې تقسیم کړې شوه. په دې کښې هم په دې موضوع باندې ټول تفصیل موجود دې.

**2** د "نابہہ اسٹیم پریس" الفاظ د جوہانس برگ سے بریلی په صفحه ٦ پارټ ۲ کښې شائع شوي د حدائق بخشش حِصّه سوم د پاسني مخ په عکس کښې موجود دي.

[يعني په لاس ليکونکي]او پريس والؤ قصداً يا په هير کښ د دې تاکيد خيال اُو نه ساتلو. د کتاب د چاپ کيدو نه پس بيا بيا فقير(محبوب علی خان) خپله توبه شائع کړي ده. اللّٰه تعالٰی او د هغه رسول ﷺ دِ د فقير توبه قبوله کړي او سُنِّيان مسلمانان ورونړه دِ هم د اللّٰه او رسول د پاره ما مُعاف کړي.“

**محترمو لوستونکو!** توَجُّه اوکړئ. د اعلٰی حضرت رَحمَۃُاللّٰہِ عَلَیْہ د وفات نه پس د هغوئي د غيرمطبوعه او د غير تصديق شوي کلام په ليك کښ يوه غلطي واقع شوه. د غلطي کوونکي د طرف نه د پوسټرو، پمفلټو، اخبارونو او فتوو په صورت کښ توبه نامه شائع شوه، ځکه چه د غلطئ هغوئي ته سخت احساس وو، هغوئي د دې نه د خپل عِزَّت مسئله جوړه نه کړه، د وضاحتونو په ذريعه ئې خپله غلطه خبره صحيح نه ثابتوله، بلکه د غلطئ اعتراف کولو سره سره ئې توبه نامه هم شائع کړه. د دې توبه نامې نه پس د خپلو او پرَدو اعتراض هم ختم شو، خو بل طرف ته حال اوګورئ چه په جنوبي افريقا کښ اوسيدونکي ديوبندی وهابی تبليغيان ثومره د عقل نه خلاص دي. د ”جوہانس برگ سے بریلی“ په ص ۷ پارټ ۲ باندې د حَدائق بخشش حصّه سوم د صفحه ۳۷ عکس موجود دې. شايد چه هغوئي دا ډير په فخر شائع کړې دې، خو د بصيرت دا ړانده، د بصيرت نه هم محرومه معلوميږي. په دې مطبوعه عکس کښ لفظ

"علیحدہ" په ښکاره لیك کښې موجود دې او په کومو دوو شعرونو چه د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف اعتراض کوي، د هغې نه پس هم د هغه دوه شعرونه د باقي شعرونو نه جُدا کولو د پاره "خط" راښکودې شوې دې.

دا د قدرت کرشمه اوګنړئ چه د جوہانس برگ سے بریلی' پارٹ۲ ص۷ باندې د حدائق بخشش حصّه سوم د صفحه ۳۷ عکس چاپ کولو باندې د جنوبي افریقا دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د خپله لاسه په په ځان پورې خلق اوخندول او د هم دې په ذریعه د مولانا محبوب علی خان د بیان تصدیق هم اوشو.

د ۳۳، ۳٤ کالو نه پس په جنوبي افریقا کښې د دې شعرونو په باره کښې په اعلیٰ حضرت فاضل بریلوی باندې دې دیوبندیانو تبلیغیانو په دې سوچ بیا اعتراض اوکړو چه په ۱۹۵۵ء کښې په هندوستان کښې په دې مُعامَله کښې چه څه شوي وو، د هغې تفصیل به جنوبي افریقا والؤ ته څه معلوم وي، او څوك به تحقیق کوي؟ نو ځکه به دوئي د اعلیٰ حضرت خلاف خلق ګمراهه کولو کښې کامیاب شي. ځان ته د دین ټیکیداران وئیلو والا، بخپله ځان ته علمائے حق وئیلو والا، کیدې شي دا ګنړي چه د هغوئي سازشونه او د غندنې وړ کاروائیانې به د هغوئی په حق کښې فائده مندې ثابتې شي خو په دې نه پوهیږي چه د ازل نه د هر یو څه برخه وه، هغه ورکړې شوي

ده. د دې ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو د علماؤ د مخ تورنو كارونو باوجود د ديوبنديانو وهابيانو مُلّا پرستو په نصيب كښې صرف د هغه تش د نوم علماؤ ستائنه او صِفِتونه او د هغوئى دِفاع كول دي. په مونږ سُنيانو باندې د الله تعالىٰ ډير زيات فضل و احسان دې چه الله پاك مونږ ته د خپل خوږ رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ، د هغوئي د آل و اولاد، د هغوئي د اصحابو او اولياءُ الله رِضوانُ اللهِ تعالىٰ عَلَيْهِم اَجْمَعِين مدح او ثنا او د هغوئي د ناموس حفاظت را نصيب كړې دې. الله پاك دِ زمونږه دا اعزاز او جُدا حيثيت په دواړو جهانو كښې سلامت لري او زمونږه حشر دِ د خپل خوږ رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د غلامانو سره اوكړي.

په خپله خُله ځان ته عُلماءِ حق وئيلو والا دا ديوبنديان وهابيان كه د عدل و انصاف اُصول او قواعد مني نو دوئي دِ اوښائي چه آيا د حق نه د خبريدو نه پس څه د اعتراض ګُنجائش پاتې كيږي؟ كه نه [پاتې كيږى] نو، دې ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو ډلې علماؤ ته په پكار دي چه په امام اهلسنت مولانا احمد رضاخان بريلوى رَحْمَةُ اللهِ تَعَالىٰ عَلَيْه باندې د اعتراض كولو په ځائ د خپلې سختې غلطئ اعتراف اوكړي او په يو مسلمان باندې د تُهمَت او بُهتان لګولو عذاب په سر نه اخلي.

* د جوہانس برگ سے بریلی په پارټ ۱ ص ۱۱ كښې، د جوہانس برگ سے بریلی مصنِّف د نبــي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د مولود شريف خوشحالئ

کولو1 په باره کښې د دیوبندي عالم رشید احمد ګنګوهی او خلیل احمد انبیټهوي فتوٰی نقل کړي ده چه د"میلاد شریف خوشحالئ کول داسې دي لکه هندوان چه د خپل کنهیا [د هندوانو د مشر] د پیدائش د ورځې خوشحالئ کوي." او د دې په وضاحت کښې د جوہانس برگ سے بریلی مصنِّف د یو کتاب حواله ورکولو نه بغیر په مونږه اهل سنَّت و جماعت باندې چه کوم غټ بُهتان لګولې دې، د هغې سزا به اِنْ شَآءَاللہ تَعَالٰی هغه ته په دُنیا او آخِرت کښې ضرور ورکړې شي او مونږه ټول اهل سُنَّت و جماعت د الله پاك په بارګاه کښې عرض کوو چه هغه ته په دُنیا او آخِرت کښې عبرتناکه سزا ورکړي.

د جوہانس برگ سے بریلی مصنِّف اصل الفاظ اوګورئ، هغه لیکي:

Hazrat Moulana Rashid Ahmad Gangohi forbade Meelad, because the Meelad reciters copy and imitate the Blessed Birth of Rasulullah Alayh-es-Salam in the following manner, that a lady sits behind a curtain with a baby in her lap. When the Meelad reciters mention the birth and that Aamina is going through severe labour pains, the lady behind the curtain starts moaning and groaning as if she is really experiencing labour. Suddenly she pinches the baby and the baby cries

---

1 د میلاد شریف (یعني د عید میلاد النَّبِـی ﷺ) په باره کښې زمونږه د اهل سنت وجماعت موقف معلومولو د پاره زما کتاب "اسلام کی پہلی عید" اوګورئ. (کوکب غُفِرَلہٗ)

out aloud. On hearing this cry the meelad reciters adjudge it to be the cry of the Blessed Birth, and start chanting, Ya Nabi Salaamolaik, Ya Rasool Salaamolaik. They tie up small pieces of cloths with blood stains on it to **mark the blessed Birth**. They mimic the scene as if it is really taking place.

**د انګريزئ د عبارت ترجمه:** حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي به د ميلاد نه منعه کوله ځکه چه ميلاد نمانځلو [يعني مناوهلو] والؤ به د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د ولادت نقل او تقليد داسي کولو څنګه چه يوه زنانه مړ ماشوم په خپله غيږه کښ اخستې وي او ناسته وي، کله چه ميلاد نمانځلو [يعني مناوهلو] والا خلق د ولادت ذِکر کوي او دا وائي چه (حضرت) آمنه (رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهَا) ته د ماشوم په پيدا کيدو په وخت سخت تکليف وو نو په پرده کښ زنانه ناسته وي او د درد سخته ژړا شروع کوي لکه چه هغه په خپله په دې کيفيت کښ اخته وي. ناڅاپه هغه ماشوم په ګوته سکونډ ورکړي او ماشوم په زوره په ژړا شروع کوي د دې ژړا په اوريدو ميلاد مناوهلو والا دا خيال کوي چه دا ژړا د مبارك ولادت په وجه ده نو بيا هغوئي په اوچت آواز يانبی سلام عليك، يارسول سلام عليك لوستل شروع کوي. د کپړې په وړو وړو ريځو چه وينه پرې لګيدلي وي هغه ريځې په مټ باندې تړي چه د هغې نه دا واضحه کيږي چه ولادت شوې دې هغه د دې واقعې نقل کوي چه هُغه [واقعه] واقعي پيښه شوي ده.

**محترمو لوستونکو!** دا خادم اهلسُنَّت عرض کوي چه د جوہانس برگ سے بریلی مصنِّف چه دا څه ليکلي دي، دا هغه د ځان نه يوه بکواس قصّه راجوړه کړي ده او د رسول اللهصَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ ډيره سخته ګستاخي

ئې کړي ده. د دُنیا یو صحیحُ العقیده سُنّي مسلمان داسې کول خو لا پرېږده، داسي سوچ هم نه شي کولې.دا ګنده سوچ صرف د دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د علماؤ حصّه ده. زمونږه د اهلسُنَّت و جماعت دا فیصله ده چه څوك داسې اوکړي د هغه د اسلام سره هیڅ تعلُّق نشته. د جوہانس برگ سے بریلی مصنِّف او د دیوبندیانو هر یو مبلِّغ ته زما دا چیلنج دې چه هغوئي د صحیحُ العقیده اهلِ سُنَّت و جماعت د طرف نه منعقد شوي په یو **محفلِ** میلاد شریف کښې هم داسې کول (څنګه چه د جوہانس برگ سے بریلی خبیث مصنِّف لیکلې دي) ثابتولې نه شي، هغه دِ دا تسلیم کړي چه هغه د دې بهتان لګولو په ذریعه نه صرف د رښتیني مسلمانانو زړونه دردَولي دي بلکه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ او د هغوئي د مور صاحبه، حضرت آمنه رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهَا سخته ګستاخي ئې کړې ده او د الله تعالٰی عذاب ته ئې دعوت ورکړې دې. اِنْ شَآءَ اللهُ تَعَالٰی دا بدباطنه خبیث به د دې سخت بهتان سزا ضرور مومي.

* **محترمو لوستونکو!** د جوہانس برگ سے بریلی کتابچو درې واړو حصو کښې دیوبندیانو وهابیانو د دیوبندي اِزم د نَصبُ العین او د خپل بَد عادت مطابق، د خپل طرف نه ډېرې بې بُنیاده خبرې جوړې کړې دي او په مونږه اهل سُنَّت و جماعت باندې ئې بهتانونه لګولي دي او عوام ئې د اهل سُنَّت و جماعت نه د بَدګمانه کولو غلط کوشش کړې دې. د دې نه علاوه د جوہانس برگ سے بریلی مصَنِّف په خپلو کتابچو کښې یو

ځو شعرونه هم د مختلفو شاعرانو لیکلي دي او د خپل بد عادت مطابق ئې د هغې غلط مفهوم پیش کړې دې. دې خادمِ اَهلِ سُنَّت خو دا غوښتل چه د جوہانس برگ سے بریلی کتابچو یوه یوه کرښه بلکه د یو یو لفظ پوسټ مارټم رپورټ خپلو لوستونکو ته پیش کړم. خو مُسَوَّده دومره غټه شوه چه دوستانو مشوره راکړه چه څه حِصّه دِ اوس پاتې کړې شي او د جوہانس برگ سے بریلی په جواب کښې دِ د حصّه دوم په صورت کښې شائع کړې شي، دا مشوره مناسبه وه بیا هم په دې تحریر کښې د دیوبندیانو، په مونږ اهل سنَّت وجماعت باندې د ټولو الزامونو او تهمتونو (د الله په فضل سره) مجموعی او شافی جواب ورکړې شوې دې. دا خادمِ اهل سنَّت عرض کوي چه دیوبندیان وهابیان تبلیغیان به د خپلو بدو حرکتونو په وجه زمونږه څه نقصان اوکړي خو دومره ضرور ده چه عوامو ته هغوئي خپل بدرنګ مخ ښکاره کوي او عوام به په دې خبره پوهه شوي وي چه دا دیوبندیان او د دیوبند علماء څومره دروغژن او غلط خلق دي. الله تعالیٰ دِ مونږه د دوئي نه او د دوئي د شر نه په خپله پناه کښې اوساتي.

* **محترمو لوستونکو!** د "جوہانس برگ سے بریلی" مُصَنِّف او د دیوبندي وهابي تبلیغي ډلې عالمَان او عوام، ټول شاید دِین خپله اجاره داري ګنړي. دا خلق په خبره خبره رښتیني مسلمانانو ته مُشرك او بدعتي وائي، لکه د دوئي په نِزد چه صرف دوئي مسلمانان دي او باقي د ټولې دُنیا

د رښتیني مسلمانانو د اِیمان او اسلام سره هڅو څه تعلُّق نه وي، حالانکه دا د هغوئي یو غلط خیال دې چه د حقیقت سره ئې هیڅ تعلُّق نشته. دا (دیوبندي وهابي تبلیغي) بیشکه عدل نه کوي بلکه ظُلم کوي. د ظُلم تعریف هم دا دې چه صحیح ته غلط او غلط ته صحیح وئیل، جُرم د یو چا او مُجرِم بل چا ته وئیل. دا دیوبندیان وهابیان تبلیغیان جائز او سُنَّت او مستحبو اعمالو ته شِرك او بدعت وائي.

**محترمو لوستونکو!** پخپله سوچ اوکړئ چه جائز او نیك کار ته غلط او بد وئیل ظُلم نه دې نو نور څه دي؟ او د الله تعالٰی په کلام (قرآن) کښې صفا اعلان دې چه "بیشکه الله تعالٰی ظالِمَانو ته هدایت نه ورکوي."

د *جوہانس برگ سے بریلی*، پارټ۱ په صفحه ۱۵ کښې د کتابچې مُصَنِّف، په رښتیني سُنّي مسلمانانو باندې دا لوئي بُهتان لګولې دې چه "سُنّي مسلمانان، د اولیاءُ الله په عُرسونو کښې د قبرونو طواف کوي، قبرونو ته سجدې کوي او Shirk Practices (د شرك عمل) کوي، ترڅو چه سُنّي مسلمانانو د خپل دې کار نه توبه نه وي کړې د هغوئي سره نکاح Allow (جائز) نه ده." ما عرض کړې دې چه دا په مونږه باندې لوئي بُهتان دې. قبر یا د هغې غلاف ښکُلَول، مَحَبَّت دې او دا د دیوبندیانو د حکیمُ الامَّت تهانوی د تحریرونو نه هم

ثابت دي1. دې ته شرك پریکټس وئیل ظُلم دې، یو سُنّي مسلمان، د الله تعالیٰ نه سِوا هیڅ کله چا ته سجده نه کوي او د خانۀ کعبې نه سِوا د کوم یو کور یا مزار وغیره طواف نه کوي او نه دا جائز ګنړي. کوم خلق چه د سُنّي مسلمانانو په باره کښې د قبر پرستۍ وغیره بُهتان لګوي، هغوئي بیشکه ظالمَان دي. رښتیني مسلمانانو ته مشرك وئیلو والا د دې دیوبندیانو، وهابیانو، تبلیغیانو د علماؤ په تحریرونو کښې د هغوئي د خپلو غټو غټو علماؤ د پاره، د هغوئي نظریات پخپله د هغوئي د فتوو مطابق مشرکانه دي خو هغوئي ته د خپل شرك احساس نشته. کیدې شي چه دې دیوبندیانو، وهابیانو، تبلیغیانو ته د شرك او بدعت صحیح تعریف هم معلوم نه وي.

* زه دا ضروري ګنړم چه خپلو لوستونکو ته د قرآن و سُنَّت مطابق د شرك او بدعت په باره کښې خپل عقائد او نظریات مختصر وړاندې کړم، چه لوستونکو ته معلومه شي چه مونږه اهل سنَّت و جماعت، سُنیانو (بریلیانو) ته مشرك وئیلو والا دا دیوبندیان وهابیان څومره ظالمَان دي.

**محترمو لوستونکو** اوګورئ: زمونږه عقیده ده چه د الله تعالیٰ په ذات و صفات، نومونو او افعالو کښې هیڅ څوك هم د هغه شریك او برابر نشته. مونږه سنیان مسلمانان، د عبادت لائق صرف او صرف

1 د قبرونو ښکُلَولو په باره کښې د فاضل مُصَنِّف دوه کتابونه ضرور اوګورئ: ۱۔ مزارات و تبرکات اوران کے فیوضات ۲۔ قبر کے احکام وآداب (ناشر).

الله تعالیٰ وحده لاشريك ګنړو او منو. د الله تعالیٰ په مِلك [بادشاهۍ]
او تصرُّف کښې بل هيڅ څوك د هغه شريك يا د هغه برابر يا د هغه
مِثل نه منو. مونږه د الله تعالیٰ نه سِوا بل څوك (که هغه هر څوك وي)
مستقل بالذات او مستقل او حقيقی تصرُّف کوونکې نه ګنړو. زمونږه
منلې شوي او ښکاره عقيده ده چه د کائنات هر څيز، هر آن او هر امر
د الله تعالیٰ يقيني طور محتاجه دې او الله تعالیٰ په خپل مخلوق کښې د
څه آن، څه څيز او يو امر کښې هيڅ کله محتاجه نه دې، نه داسې کيدل
شي. په آسانو الفاظو کښې به دا اووائم چه مونږه اهلِ سنَّت وجماعت
(سنّی) د الله تعالیٰ انبياء، رسولان او اولياء د الله تعالیٰ په ذات و صفات
کښې هيڅ کله په هيڅ شان شريك نه منو او انبياء او اولياء د الله په
شان يا د الله مثل هيڅ کله نه منو او د الله تعالیٰ نه سِوا بل څوك د
عبادت لائق هيڅ کله نه منو.

## د شرك شرعی معنیٰ

په "لِسَانُ الْعَرَب"(عربی) **ووم جلد ص ۱۰۰۰** از علامه ابن منظور (طبع
جديد مطبوعه دار احياء التراث العربی بيروت) کښې دي:"کله چه دا وئيل کيږي
چه فلانکي د الله تعالیٰ سره شِرك اوکړو نو د هغې مطلب دا دې چه
هغه د (الله نه سِوا) بل څوك هم د الله تعالیٰ په مِلك او تصرُّف کښې
شريك کړو او د شرك معنیٰ دا ده چه د الله تعالیٰ په ربّ کيدو کښې
بل څوك د الله شريك جوړ کړې شي حلانکه الله تعالیٰ د هر قِسمه

شریڪانو نه پاك دي.“ 1

**محترمو لوستونڪو!** د شِرك ”شرعی معنٰی“ تاسو اوکتله او د شرك د معنې نه مخکښ مو د الله تعالٰی په باره کښ زمونږه عقیده هم اوکتله. تاسو ټخپله اووائې آیا ستاسو ضمیر ګواهي نه ورکوي چه زمونږه د سُنیانو په عقائدو کښ د شِرك هیڅ شُبه هم نه شي کیدې.

افسوس چه د لفظ ”شِرك“ په شَرعي او حقیقی مفهوم او معنٰی باندې د پوهیدو نه بغیر، صرف د لفظ ”شِرك“ تعریف دیوبندیانو وهابیانو ظالِمَانو دا کړې دې چه ”دوه ذاتونه په یو صِفَت کښ شریك ګڼړل شِرك او ڪفر دې.“ که دا تعریف په دې الفاظو کښ صحیح اُوګڼړل شي نو د دیوبند مفتیان ټخپله هم په شرك او ڪفر کښ ډوب پراته دي. چنانچه د دیوبندیانو وهابیانو کړې دې تعریف مطابق توجُّه اوکړئ.

”د الله وجود دې او د انسان هم وجود دې. یعني (په کیدو کښ)

---

1 د جوہانس برگ سے بریلی مصنف دِ د خپل شیخ محمد زکریا کاندهلوی د کتاب ”فضائل درود شریف“ جملې ښه په غور اوګوري او د دې جواب دِ راکړي. په دې جملو کښ د دیوبندیانو وهابیانو او تبلیغیانو امام مومنانو ته د الله شریك وئیلي دي.

[هغه جُملې دا دي] (۱) ”د دې نه زیات به نور څه فضیلت وي چه په دې عمل کښ الله او د هغه د فرښتو سره مومنان شریك دي.“ (ص٦)

(۲) ”ځکه چه د حضور اقدس صَلَّی اللہُ عَلَیۡہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمَ په اعزاز او اِکرام کښ (د مخلوق سره) الله جل شانه ټخپله هم شریك دې.“ (ص٧)

دوارړو ته شريك وئيل كيږي. الله تعالٰی هم اَوري، انسان هم اَوري. الله هم وِيني،انسان هم ليدل كوي.الله تعالٰی علم والا دې او انسان هم عالِم وي. الله تعالٰی مُختار دې او انسان هم په خپله اراده او اختيار سره كار كوي. الله تعالٰی پاك دې او انسان خپل ځان، خپلو جامو، خوراك، لوښو او ځائ ته پاك وائي، داسې نور هم بيشميره مثالونه شته دې. كه د شِرك معنٰی د "ديوبندي وهابي تبليغي ډلې" په نِزد دوه ذاتونه صرف په يو صِفَت يا مُعامله كښې شريك ګڼړل وي نو بيا د شِرك دې مفتيانو ته پكار دي چه خپل وجود په تُوره اُووهي او ځان ختم كړي. په خپلو غوږونو كښې سره كړي تاركول واچوي او د اوريدلو د شرك نه دِ ځان آزاد كړي. په خپلو سترګو كښې دِ سره كړي سِيخوُنه اُووَهي او د الله د صِفَت بصير د شريك كيدو نه آزاد شي. خپل دِماغ دِ په ځَتَكِي اُووَهي او د خپل شعور ماده دِ ختمه كړي او جاهلان دِ شي. خپل ځان دِ په ګندګئ او خَباثَت كښې اولړي او د هرې پاكئ نه دِ لرې اُوسي..... خو افسوس دا دې چه په خپله ژبه او د خپل قلم په ذريعه د مشين ګَن د كارتوسو په شان په خبره خبره، په صادقانو مسلمانانو باندې د شِرك او كفر فتوې لګوونكي دا ديوبنديان وهابيان تبليغيان به هيڅ كله داسې كولو ته تيار نه شي. كله چه هغوئي په خپلو فتوو كښې ګير شي نو بيا په مختلفو بهانو او الفاظو د اخوا ديخوا خبرې شروع كړي.

**محترمو لوستونکو!** زمونږ د اهل سنّت و جماعت د قرآن وسنّت مطابق دا پخه عقیده ده چه وجودِ حقیقی په اصل کښې د الله تَعَالٰی شان دې. اوریدل، لیدل، علم او اختیار ذاتي او حقیقی طور د الله تعالٰی صِفات دي. الله تعالٰی د هر څیز حقیقی خالق او مالِك دې او هغه خپل څه صِفات خپل ځیني مخلوق ته هم ورکړي دي. که الله تعالٰی خپل خاص مخلوق انبیاؤ او اولیاؤ ته د عام مخلوق په مقابَله کښې څه صِفات زیات ورکړي نو د هغې انکار څنګه کیدې شي؟ الله تعالٰی خپل څه صِفات خپل مخلوق ته ورکړي دي او خپلو ګرانو بندګانو ته ئې د عام مخلوق په نسبت د هغه صفاتو د کمال نه څومر زیات ورکړي دي؟ د هغې صحیح اندازه صرف هغه کس کولې شي په چا چه د الله خاص کرم شوې وي، ګني عام مخلوق خو به هغوئي هم د خپل ځان په شان ګنړي یعني چه څومره [صفات] زما سره دي، دومره به د الله تَعَالٰی د خاصو بندګانو سره هم وي، حالانکه داسې نه ده بلکه په خاصو بندګانو باندې د الله تَعَالٰی ډیر زیات کرم د قرآن او حدیث نه ثابت دې او حُضُورِ اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ، چه د الله تعالٰی د صفاتو کامل مَظهر دې او د الله تَعَالٰی محبوب دې، د هغوئي صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم د عظمت او شان د اوچت مقام اندازه څوك لګولې شي.

د الله تَعَالٰی قدرت دې چه پخپله د اَکابِرِ عُلمَاءِ دیوبند ګنړ شمیر تحریرونه هم د دې حقیقت ګواهي ورکوي. د شیخ محمد زکریا په

تصنیف، تبلیغی نصاب کښې (چه د هغې نوم ئې بدل کړو او فضائلِ اعمال ئې کېښودو او هغې ته د جنوبي افریقا دیوبندیان وهابیان تبلیغیان په ظاهره د قرآن نه زیات اهَمِّیَّت ورکوي) او د **کمالاتِ اشرفیه** په صفحه ٥٦ کښې هم دا فرمان اِلٰهی (حدیثِ قُدسی) موجود دې، الله تعالیٰ فرمائي: "زما بنده د نفلونو په کثرت زما نِزدیکت حاصلوي تر دې چه زه هغه خپل محبوب جوړ کړم، بیا د هغه سمع [یعني غوږونه] زه جوړ شم چه په هغې هغه اوریدل کوي، د هغه بصر [یعني سترګې] زه جوړ شم چه په هغې هغه لیدل کوي، د هغه لاسونه زه جوړ شم چه په هغې هغه نیول کوي، د هغه ښپې زه جوړ شم چه په هغې هغه ګرځي، د هغه ژبه زه جوړه شم چه په هغې هغه خبرې کوي، که هغه زما نه اوغواړي نو زه ضرور هغه ته ورکووم." (بخاری شریف حدیث نمبر ٦٥٠٢)

د دې حدیثِ قُدسی په شرح کښې امام رازی رَحمَۃُاللہِ عَلَیہ فرمائي چه هغه بنده څوك چه د الله محبوب جوړ شي، بیا د هغه د شان دا حال وي چه هغه د لرې او نِزدې نه لیدل اوریدل او تصرُّف کوي، ځکه چه د الله تَعَالیٰ د فرمان مطابق د هغه بنده په صفاتو کښې د الله تَعَالیٰ خاص قوَّت کارفرما وي، یعني هغه بنده د الله تعالیٰ د هغه صفاتو خصوصي مظهر جوړ شي چنانچه په دې فرمان اِلٰهی باندې د ایمان او یقین لرلو سره زمونږ د اهلسنّت و جماعت دا عقیده ده چه د الله تعالیٰ انبیاء اولیاء بیشکه د الله تعالیٰ په ورکړه د روحاني قوتونو او خصوصي طاقتونو والا دي او

د الله په ورکړي شوي قوتونو او اختیاراتو د مخلوق مدد کوي.

د دیوبندیانو وهابیانو د امام رشید احمد گنگوهي د ژوند حالات لیکونکې دیوبندي عالِم محمد عاشق اِلٰهی میرټهی یو پوره باب د "تزکیه وتصرفات" په نوم لیکلې دې. هغوئي لیکي: "هغوئي (یعني گنگوهي) د دنیا نه لاړو خو د هغه تصرفات په عالَم کښې [اوس هم] خپل کار برابر کوي." (تذکرۃ الرشید ج۲ ص۱۵۱) 1

او د دارالعلوم دیوبند مشهور عالِم محمود الحسن د خپل گنگوهي صاحب په شان کښې لیکي:

"حوائجِ دِین ودُنیا کے کہاں لے جائیں ہم یاربّ
گیا وہ قبلۂ حاجات روحانی و جسمانی" (کلیات شیخ الهند، ص۸)

---

1 د تصرفاتو په عنوان د شیخ محمد زکریا تصنیف "آپ بیتی" کښې هم پوره باب او د اشرفعلی تهانوی کتاب "بوادرالنوادر" کښې د صفحه ۷۸۰ نه ۷۸۶ "رسالۃُ التعرُّف فی تحقیقِ التصرُّف" موجود دې.

"د باطنی توجه په ذریعه په بل کس باندې څه اثر اچول، چه هغې ته د صوفیاؤ په اصطلاح کښې تصرف او توجُّه وغیره وائي." (بوادرالنوادر ص۷۸۰) او په تَذکِرَۃُ الرَّشِید ج۲ ص ۱۳۷ کښې دي چه "څنګه چه جسمانی قوت، په اجسام محسوسیه کښې تصرف کوي او یو زبردست کس په ښکاره څیزونو کښې بدلون کولو باندې د الله په قدرت قادر کیږي، هُم دغسې قَلبی قُوت چه هغې ته قوت قُدسِیه وائي، په زړونو اثر کوي او د تورو او زنګ وهلو زړونو په صفا کولو باندې بِاِذنِ‌الله قادر شي چه د هغې د لري کیدو نه بغیر باطنی اِدراك نه شي حاصلیدې. د دې قوتِ قُدسیه په کار کښې راوستلو ته تصرف وائي....او د تصرفاتو دارومدار د متصرف شیخ د زړه په قوت او روحاني طاقت باندې دې."

**ترجمه**: اے ربه! مونږه د دین او دنیا حاجتونه اوس چرته یوسو، هغه د روحانی او جسمانی حاجتونو قبله [یعني ګنګوهي] لاړو.

د دې کتاب تذکرة الرشید ج۲ ص۲۵۲ باندې پخپله د ګنګوهي صاحب وینا موجوده ده چه: "*تصرفات وکرامات اولیاءُ الله بعد ممات بحال خود باقی می ماند بلکه در ولایت بعد موت ترقی می شود حدیثے که ابن عبدالبر نقل کرده شاهد است۔*" (د اولیاء الله کرامات او تصرفات، د هغوئي د وفات نه پس هم هغه شان باقي وي. بلکه د وفات نه پس په ولایت کښې ترقی کیږي، د دې ګواهی د ابن عبدالبر نقل کړې شوې حدیث دې)

خپل دویم کتاب "*امدادالسلوک*" په صفحه ۹ ګنګوهي وائي: "*دهم مرید یقین داند که روح شیخ مقید بیک مکان نیست پس هر جا که مرید باشد قریب یا بعید اگرچه از شیخ دوراست اما از روحانیت اُو دور نیست چوں ایں امر محکم داند هر وقت شیخ رابیاد دارد ربطِ قلب پیدا آید و هردم مستفید بود چوں هردم در حل واقعه محتاج شیخ بود شیخ را به قلب حاضر آورده بلسان حال سوال می کند۔*"(بله دا چه مرید ته دا یقین ساتل پکار دي چه د شیخ روح په یو ځائ کښې قید او محدود نه وي. مرید چه په هرځائ کښې وي، که نِزدې وي او که لري، لکه د شیخ د بدن نه خو لري وي خو د هغه د روحانیت نه لري نه وي. کله چه په دې اَمر په پوخ یقین سره پوهه شي او هر وخت شیخ یاد ساتي، نو د زړه ربط به ئې پیدا شي او هر وخت به فائده حاصلوي او که مرید ته په کومه موقع د شیخ حاجت پیښ شي نو (د زړه د ربط په وجه) دِ شیخ په زړه کښې موجود اومني او د هغه نه دِ د زړه په حال سوال اوکړي)

اشرف العلوم، بابت ماه شعبان ۱۳۵۵ھ ص ۷۲ کښې تهانوي صاحب

فرمائي: ”قبرونو والؤ نه فائده حاصلیږي، کله د بَرَکت حاصلولو والا کس په اراده، او کله د هغه د ارادې نه بغیر، څنګه چه نمر نه بې اراده هم فائده حاصلیږي.“

اشرف العلوم، بابت ماه جمادین۱۳۵٤ھ ص ٤٢ کښې دتهانوي صاحب ارشاد دې: ”یو قابل اعتماد کس مولانا ګنګوهی په خوب کښې اولیدلو، (ګنګوهی ورته) اووئیل چه ما ته د مرګ نه پس الله تعالیٰ خلافت راکړو. غالباً د دې مطلب دا دې چه د تصرف اجازت راکړې شوې دې. وجه استخلاف (قائم مقام، جانشین کول) دا تصرف دې او دا عام نه دې، ځیني بزرګانو ته د وفات نه پس ورکړې شي. یو صاحب پوښتنه اوکړه چه هغه کوم قِسم تصرف وي. (تهانوی) اوفرمائیل: مثلاً چا ته چه باطنی کیفیت حاصل شي یا په هغې کښې ترقی اوشي. اوئې وئیل مثلاً د هغه بزرګ قبر ته د تللو په وجه په ذوق او شوق کښې ترقي اوشوه، نو دا ترقی د هغه بزرګ د تصرف او توجُّه د اثر په وجه وي کوم چه اِدراك [یعني پوهه] لري. د مجلس والؤ نه یو کس اووئیل چه په کور کښې ناست اوسیدو باندې خو هم دا فائده کیدې شي. (تهانوی) اووئیل: د قبر سره د مړي خاص تعلق وي، هلته د هغې زیاته توقع وي.“

د هُم دې تهانوی صاحب د کتاب **تعلیم الدین** (مطبوعه دارالاشاعت، کراچی) په صفحه ۱٦٦ کښې د هر یو کس د پاره دا تاکید درج دې چه ”د اولیاؤ د مزارونو نه مُستَفید (یعني د فائدې طالب) کیږئ.“

د کمالاتِ اشرفیه، په صفحه ۲۲۳ کښې دي، هُم دا تهانوی صاحب فرمائي، چه ”د الله تعالٰی عادت دې چه بې واسطه هغه فیوض او برکات نه نازلوي.“

په خپل آخري تصنیف **بوادرُ النوادر** په صفحه ۸۰ کښې هُم دا تهانوی صاحب فرمائي: ”او خبریدل پکار دي چه د ځیني اولیاءُ الله نه د مرګ نه پس هم تَصَرُّفات او خوارق [هغه عمل چه عقل ئې نه مني] ظاهرېږي او دا امر معنًى حدِّ تواتُر ته (یعني پرله پسې، مسلسل) رسیدلې دې.“

موجوده تبلیغي دیوبندی وهابی علماء خو د مخلوق د تصرف مُنکِر دي، خو د دوئي د مشرانو وینا ده چه اولیاءالله په تصرفاتو صرف قادر نه دي، بلکه د وفات نه پس هم د هغوئي تصرفات باقی وي او په هغې کښې ترقی کیږي. لوستونکي به ټچپله پوهه شي چه موجوده تبلیغی دیوبندی وهابی خلق چه خپلو کومو مشرانو ته خپل امامان او مُقتدا وائي، د دوئي هغه مشران دا موجوده تبلیغی دیوبندی وهابی خلق غلط ثابتوي. که د دیوبند هغه مشران صحیح اومنل شي نو دا کشران (موجوده) غلط ثابتیږي او که دا کشران صحیح اومنل شي نو د هغوئي مشران غلط ثابتیږي فیصله دِ دوئي ټچپله اوکړي چه کوم یو صحیح دي او کوم یو غلط؟ یا دِ تسلیم کړي چه دواړه صحیح نه دي.

❊ **محترمو لوستونکو!** د نن صبا دا دیوبندیان وهابیان تبلیغیان د انبیاؤ او اولیاؤ خلاف خبرې کوي، دوئي د دې حده پورې ظالمَان

دي چه د انبياؤ اولياؤ سره د محبت او عقيدت عقيدې ته شرك وائي، د انبياؤ او اولياؤ تعظيم ته دا خلق شِرك وائي. كيدې شي چه دا خلق په قرآن مجيد باندې ايمان نه لري يا قرآن نه لوَلي. د دوئي نه دا تپوس كووم چه كه صرف عزّت كول، تعظيم و توقير كول، شرك يا عبادت دې نو په قرآن كښې د ”وَتُعَزِّرُوْهُ وَ تُوَقِّرُوْهُ“ حكم ولې دې؟ په قرآن كښې دي چه: لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا الخ..... لَا تَرْفَعُوْٓا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ الخ..... لَا تَجْعَلُوْا دُعَآءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ كَدُعَآءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا ..... وَ مَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ ﴿٣٢﴾ تعظيم ته شِرك وئيونكي دا (او د تعظيم سره متعلق نور) قرآني آيتونه ولي هيروي؟

دا ټول آيتونه، د تعظيم احكام او اهميت بيانوي. قرآن خو صفا وائي. وَ لِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَ لِرَسُوْلِهٖ وَ لِلْمُؤْمِنِيْنَ او ورسره دا هم فرمائي وَ لٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٨﴾ ثابته شوه چه څوك د انبياؤ اولياؤ د عزّت او تعظيم منكر دي، هغه د قرآن د فيصلې مطابق ”منافق بې علمه“ دي. بلكه هغه خلق د قرآن منكر جوړيږي، ځكه چه قرآن د انبياؤ او اولياؤ د پاره عزَّت او تعظيم ثابتوي، د شعائرالله تعظيم ته د زړونو تقوٰى وائي او دا ديوبنديان وهابيان تبليغيان ظالمَان دې تعظيم ته

شِرك وائي.[1] د انبياؤ اولياؤ تعظيم ته شِرك وئيل او د مرتدو، ګستاخانو تعظيم و توقير كول كه د قرآن انكار او په دِين پورې تهوقې نه دي نو نور څه دي؟

**محترمو لوستونكو!** اولياء الله رَحمَةُاللهِعَلَيهِم، د الله خواره او نازولي بندګان دي. د هغوئ په ملتِ اسلاميه باندې دا احسان دې چه هغوئ د الله د مخلوق رهنمائي كړي ده. د خلقو زړونه ئې په عشقِ الٰهی عَزَّوَجَلَّ ، او عشقِ رسول (ﷺ) باندې آباد كړي دي. هغوئ چه ترڅو پورې په ظاهري ژوند كښ وو، د شريعت او سنَّت پخپله هم پابند وو او خلقو ته به ئې د شريعت او سنَّت د پابندئ تلقين كولو. د اصلاح عقائد و اعمال فريضه به ئې ادا كوله. اولياءُ الله چه كله د دې فانی دُنيا نه رخصت شي نو خلق د هغوئ مزاراتو ته ځي ځكه چه د كتاب و سُنَّت مطابق د اولياؤ مزارات هم د بركت ځائيونه دي،د دُعا د قبليدو مُقامات دي. خلق په محبت او عقيدت مزارونو ته ځي هيڅ كله تعظيمی سجده يا د قبر طواف نه كوي، د قبر خاوند هيڅ كله په هيڅ شان د الله شريك

1 لوستونكو ته دِ واضحه وي چه ديوبندی وهابی تبليغی ډلې منونكو قول فعل بالكل مخالف (يعني بدل) وي. په دې كتاب كښ لوستونكو د دې ديوبنديانو د خپلو مشرانو علماؤ وغيره د حد نه د زيات تعظيم تذكِره كتلې ده. او تهانوی صاحب فرمائي چه "د علماؤ د تعظيم نه خلقو ته فائده رسی ځكه چه د دوئ (يعني د علماؤ) تعظيم په حقيقت كښ د دِين تعظيم دې." (كمالات اشرفيه، ص١٨٠). كه تعظيم كول شِرك وي نو د تهانوی د دې فرمان په باره كښ څه فتوٰی ده؟ د جواب انتظار به وي.

نه ګنړي. بلکه دا کوي چه د الله د هغه خوږ او نازولي بنده قبر خوا ته اودريږي او د الله نه د مزار د خاوند په وسيله دُعا کوي او صاحبِ مزار ته عرض کوي چه هغه د الله په بارګاه کښې زمونږه سفارش اوکړي. خلق د محبت او احترام په وجه مزار ښکلوي او يا په مزار او يا د هغې په غلاف باندې لاس کيږدي او په خپل مخ ئې راښکاږي. داسې کول هيڅ کله قبر پرستي يا شِرك نه دې. (المستدرك، امام حاكم، مسند احمد، تاريخ مدينه دمشق ابن عساكر او الشفاء فى حقوق المصطفٰى، امام قاضى عياض کښې احاديث موجود دي چه په هغې کښې د نبی ﷺ د اصحابو نه هم داسې کول ثابت دي)1

* **محترمو لوستونکو!** ''د قبر ښکُلولو په باره کښې کيدې شي چه دا خيال د چا په ذِهن کښې راشي چه قبر څوك ولې ښکُل کړي؟ ځکه چه هغه خو د خاورو او کاڼړو نه جوړ شوې دې او ښکاره خبره ده چه صِرف قبر پخپله هيڅ حيثِيَّت نه لري.'' د دې په جواب کښې عرض دې چه د اولياءُ الله سره د نسبت او محبَّت په سبب د هغوئي مُقامات او د هغوئي قبرونه ښکُلول کيږي.که صرف خاوره يا کاڼړې ښکُلول درته عجيبه ښکاري نو ''**حَجرِ اسود**'' خو هر يو ښکُلَولي، حالانکه هغه هم کاڼړې دې. خو تاسو به دا وائې چه هغه په دې وجه ښکُلوي چه جنَّتی کاڼړې دې، لِهٰذا د جنَّت سره د نِسبت په سبب هغه خاص او اهَم کاڼړې دې،

---

1 په دې موضوع باندې د تفصيل د پاره د فاضل مُصَنِّف کتابونه ۱۔ *مزارات و تبرکات اور ان کے فیوضات* ۲۔ *قبر کے احکام وآداب* اوګورئ .(ناشر).

نو عرض دي چه د حديثِ رسول ﷺ مطابق ''قَبْرُ الْمُؤْمِنِ رَوْضَةٌ مِّنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ'' (د مُومِن قبر د جنَّت د باغونو نه يو باغ دي)، د مُومِن د قبر هم د جنَّت سره نسبت اوشو، لِهٰذا د دې د خصوصيت او اهَمِّيَّت انكار ولې كيږي؟ نور غور اوكړئ. مونږ ټول قرآنِ كريم ښكُلوو، دا هم صِرف محبَّت دې ځكه چه دا كلامِ اِلٰهی دې. حالانكه كلامِ اِلٰهی صرف هغه الفاظ دي كوم چه په سياهي په كاغذ باندې چاپ شوي دي، خو مونږه كاغذ، سياهي ، هغه ګته په كومو چه د دې كاغذ جلد بندي كيږي، يا هغه غلاف كوم چه قرآن مجيد ته اغوستولې شوې دې، هغه هم ښكُلوو، صرف په دې وجه چه د دې ټولو څيزونو نِسبت او تعلُّق د كلامِ اِلٰهی سره وي، خبره صِرف الله تَعَالٰی سره د خاص تعلُّق ده. دغه شان اولياءُ الله ته هم چه كوم عزّت او مرتبه حاصله ده، هغه هم د الله پاك سره د خاص تعلُّق په وجه ده، لِهٰذا د كومو څيزونو چه تعلُّق د الله تعالٰی د ګرانو [بندګانو] سره شوې وي، هغه هم د محبت او تعظيم لائق دي.

د صفا او مروه په غونډو باندې د الله خوږې بندئ، حضرت هاجِره رَضِیَ اللهُ تعالٰی عَنْہا قدمونه ايښودي دي نو هغه غونډئ، شعائرُالله (يعني د الله نښې) اوګرځيدلې.

د قرآنِ مجيد نه معلومه شوه چه په كومو ځائيونو د الله والؤ قدمونه اولږي، هغه ځائيونه د الله نښې ګرځي نو په كوم ځائ

کښې چه د الله تَعَالیٰ اولیاء د پوره وجود سره دفن [یعني خخ] وي، د هغه ځائیونو د عظمت څنګه انکار کیدې شي؟

بیا هم دا عرض ضروری خیال کووم چه د اولیاءُ الله مزارونه او تَبَرُّکات د محبَّت په وجه ښکُولې کیږي او هغه صرف ښکُلول هیڅ کله عبادت نه دې البتَّه محبَّت دې او نیك بختي ده.

چنانچه په تذکرةُ الرشید کښې د دیوبندیانو وهابیانو د امام رشید احمد ګنګوهی معمولات په تفصیل سره درج دي. په هغې کښې د مدینې منَوَّرې او د خپلو مشائخو د تبرکاتو د ښکُلولو او د هغې د ډیر زیات تعظیم کولو تفصیلی ذکر دې.1

1 ”مولوی اسماعیل وائي چه یو ځل د مدینې منورې خاوره (ګنګوهی) ما ته راکړه چه دا اوخوره، ما عرض اوکړو چه جناب خاوره خوړل خو حرام دي. هغوئ اوفرمائیل: صاحبه هغه خاوره به نوره وي“.....یو ځل مولانا (ګنګوهي) د موم بتئ وړوکي شان ټکړه ما ته راکړه او اوئې وئیل چه: دا تیره کړه، او یو ځل ئې د کعبې د غلاف تار راکړو او اوئې وئیل: دااوخوره.“ (تذکرةالرشید،ج۲،ص۴۸،۴۹)

”د اعلیٰ حضرت حاجی (امداد الله) صاحب ورکړي شوي جُبه هم د هغوئ (ګنګوهی) سره وه. دا ئې هم د تبرکاتو په وړوکي صندوق کښې ایښودي وه.کوم وخت به ئې چه را اووِیستله نو اوّل به ئې په خپلو لاسونو کښې راواخستله، په سترګو به ئې کیښوده او بیا به ئې پرله پسې نورو ته په سر د ایښودو موقع ورکوله، هغه وخت به هغه په یو خاص کیفیت کښې ښکاریدو.“ (تذکرةالرشید،ج۲،ص۱٦۷) ”یوځل ئې اووئیل چه خلق د حرمَین شریفَین ځیزونه، د آبِ زم زم د څښلو لوښي او د کجورو هډوکي داسې غورزوي، دا خیال نه کوي چه په دې ځیزونو د مکې معَظّمې او مدینې مُنَوَّرې هواګانې لګیدلې

او د دیوبندیانو د ډلې لویو لویو عالمَانو په خپلو کتابونو کښې د پاکو خلقو یا ځائ سره د نسبت برکت او فضیلت په دلیلونو ثابت کړې دې، چنانچه اشرفعلی تهانوی صاحب فرمائي چه ”د اهلُ الله په تبرکاتو کښې اثر وي او په صُحبَت کښې ئې د هغې نه هم زیات اثر وي.“ نور وائي چه ”د بُزرګانو صحبت او زیارت ډیر لوئي خیز دې“ د هغوئي تَصَوُّر هم فائده ورکوونکې دې او هم دا اصل دې د تبرکاتو، ځکه چه د هغوئي د څیزونو په لیدلو د هغوئي یاد تازه کیږي او د هغوئي په یادولو په زړه کښې نور پیدا کیږي او د الله تعالیٰ سره تعلُّق پیدا کیږي.“ (کمالاتِ اشرفیه، ص ٦٨، مطبوعه مکتبه تهانوی، کراچی)

---

دي.“ (تذکرة الرشید، ج٢، ص٤٨) .....”(ګنګوهي) د غساله شریف (یعني د رسولُ الله ﷺ د روضې مبارکې د غسل د اوبو) په ګنګوه کښې سبیل لګولې وو او (ګنګوهی) به فرمائیل: خوك څه پوهیږي چه د (غساله) دا اوبه څنګه دي؟ (تذکرة الرشید، ج٢، ص٤٩) ”د مولانا سره په تبرکاتو کښې د نبـی ﷺ د روضې مبارکې د غلاف یوه شنه ټکړه هم وه، د جُمُعې په ورځ به ئې کله کله حاضرو خلقو او خادمانو ته د دې تبرکاتو زیارت کولو نو وړوکې صندوق به ئې پخپله بیرته کولو، غلاف به ئې را اُوویستلو، اوَّل به ئې په سترګو لګولو بیا به ئې بښکُل کړو، بیا به ئې د نورو په سترګو لګولو او د هغوئي په سرونو به ئې ایښودلو.“ (الشهاب الثاقب ص١٥٢ از حُسین احمد مدَنی) ”د نبـی کریم ﷺ د روضې مبارکې خاوره ئې په رانجو کښې اچولې وه او هره ورځ به ئې د ماسختن نه پس د اوده کیدو په وخت په سنَّت باندې د عمل کولو د پاره هغه رانجه د آخری عمر پورې استعمالول. د دې قِصّې نه عام خادمان هم خبر دي.“ (الشهاب الثاقب، ص ٥٢)

تهانوی صاحب فرمائي چه ”د خلقو په زړونو کښ انوار و برکات د دې (اهلُ الله) په وجه راځي او د برکاتو نه فائدې حاصلولو شرط د دې (اهلُ الله) سره عقیدت دې.“ (کمالات اشرفیه، ص۱۳۰)

د **بوادرُ النوادر** په صفحه ۸۵ کښ اشرفعلی تهانوی صاحب فرمائي: ”څنګه چه د اور په نِزدیوالي اوبه تودیږي، او دا صحبت چه څنګه ژوندو ته فائده ورکوي دغه شان مړو ته هم [فائده ورکوي]، هله چه د دواړو په روحونو کښ مناسبت وي، کوم چه د فیض شرط دې، پس هله چه صاحبِ مزار، صاحبِ نسبت وي او زیارت کوونکې هم صاحبِ نسبت وي او د دواړو په نسبت کښ تناسب وي، او د هغې نه زیارت کوونکي ته حاصلو شوو حالونو کښ پوخ والې او مضبوطیا راشي، هُم دا ترقي او قوت ګنړلې کیږي، او د نسبت واسطه، د وحداني کیدو په وجه د وَجد نه ادراك هم اوشي.“ (په نسبت کښ د پوخ والي او یو والي په وجه ډیر ښه قابِلِ فهم شي)

**یاد ساتئ!** د یو څیز عبادت کول یوه خبره ده او د یو څیز تعظیم او تکریم کول بله خبره ده، په دواړو کښ ډیر فرق دې. دا هم **یاد ساتئ** چه د شرك تعلق د عقیدې سره دې او مونږه اهل سنَّت و جماعت هیڅ کله هم یو قبر والا (هغه که نبـی وي او که ولی وي) مستقل بِالذَّات او حقیقی تَصَرُّف کوونکې نه منو، بلکه د اولیاءُ الله مزارونو ته ځو او د الله په حُضُور کښ فریاد کوو او دا امید ساتو چه هغه به د خپلو

نیازبینو بندګانو د نیکو، عبادتونو، او د دِین د پاره د خدمتونو په بَرَکت، په خپل عفو و کرم او عطا سره زمونږ د نامۀ اعمال نه ګناهونه لرې کړي.

که زمونږ دې کار ته هم دیوبندی وهابی مُلَّا پرست خلق ''قبر پرستی'' وائي، نو بیا د دوئی نه دا سوال دې چه کوم خلق بیت الله (مکّې مکرَّمې) ته ځي یا د مکّې نه لرې د کعبې په اړخ سجده کوي، د هغوئی په باره کښې څه رائے لرل پکار دي؟ دې دیوبندی وهابی تبلیغی خلقو ته لفظِ ''غیرُ الله'' ښه یاد دې او هغوئي دا لفظ ډیر په سپکاوالي، ټوقه او ګستاخئ سره د انبیاؤ اولیاؤ د پاره لیکي او وائي (حالانکه دوئي ته به د لفظِ غیر معنٰی هم صحیح معلومه نه وي) د دې ظالمَانو نه دا سوال دې چه کومې کوټې مبارکې ته بیتُ الله وائي، هغه چه د کومو کانړو نه جوړه شوي ده هغه کانړي هم غیرُ الله دي، بیا دا دیوبندیان وهابیان د دې کانړو په اړخ خپل د عبادت مخ ولې اړوي؟ ښکاره خبره ده چه د دې جواب به دا وي چه ''د بیتُ الله په عمارت کښې استعمال شوو کانړو طرف ته د سجدې کولو حکم دې.'' نو بیا د هغوئي نه پوښتنه ده چه دا هم اومنئ چه الله تعالٰی که د ''غیرُ الله'' طرف ته د سجدې کولو حکم کوي نو هغه تسلیمول ضروري دي، ولې چه د کعبې کانړي هم (ستاسو مطابق) د انسانانو په شان د غیرُ الله په صَف کښې شمیرلې کیږي، لهٰذا دا خلق به اووائي چه مونږه په عبادت کښې خپل مخ بیتُ الله طرف ته کوو او په بیتُ الله کښې د

حاضرئ په وخت په ظاهره د کعبې په دیوالونو [لاسونه راښکاږو] او په غلاف پورې نښتي يو او ژاړو، فرياد کوو، مرادونه غواړو، خو هيڅ کله هم زمونږ په ذهن کښې دا خيال نه راځي چه د کعبې په ديوالونو کښې لګيدلي کاڼږي مونږه خپل معبود ګڼړو يا د هغوئي نه مرادونه غواړو.“ لهٰذا اے ديوبندی وهابی تبليغی فتوٰی بازوو! نو بيا تاسو د هغه خلقو په حق کښې ولې بدګمانی کوئ کوم چه د اولياءُ الله مزارونو او مقدس ځائيونو ته حاضرېږي او اولياءُ الله هيڅ کله معبودان نه مني بلکه اولياءُ الله د الله محبوبان او نيازبين مخلوق ګڼړي او د هغوئي آستانو ته ځي او هلته هم د الله نه سوال کوي، د دې باوُجود تاسو هغوئي ته ولې مشرك وائې؟

د علمائے ديوبند نه سوال دې چه د کعبةُ الله دننه حصّه (حطيم) کښې د حضرت اسماعيل عَلَيۡهِ السَّلَام او د هغوئي د مور حضرت هاجره رَضِيَ اللهُ تعالیٰ عَنۡهَا او حضرت آدم بنوری (رَحۡمَةُ اللهِ عَلَيۡه) قبرونه دي.1

(دا خاص مقام به د حَجَرِ اسماعيل (عَلَيۡهِ السَّلَام) په نوم ياديدو او په هغه هُمره حصّه باندې د نښې د پاره د شين رنګ کاڼږي لګيدلي وو، په تيرو کلونو کښې چه کله نوې فرش واچولې شو نو هغه نښه ختمه کړې شوه) نو آيا څوك دا وئيلې

---

**1** جناب اشرفعلی تهانوی وئيلی دي: ”سيد آدم بنوری د حضرت مجدد صاحب (رَحۡمَةُ اللهِ عَلَيۡه) خليفه دې. هغوئي د ميزابِ رحمت نه لاندې وفات شو. جنازه ئې د هغه ځائ نه نه اوچتيدله. آخِر چا اووئيل چه هُم دلته ئې خخ کړئ بيا به اوچت شي، آخِر هلته خخ کړې شو.“

(الکلام الحسن مکمل، ملفوظات تهانوی، ج۲، ص۲۲۱، مطبوعه المکتبة الاشرفيه، جامعه اشرفيه لاهور)

شي چه د کعبې طواف کوونکي، د کعبې په اړخ سجده کوونکي د کعبې په دیوالونو خپل لاسونه راښکلو والا او مرادونه غوښتونکي، په اصل کښ د کعبې طواف نه کوي، د کعبې په اړخ سجده نه کوي، د الله نه مرادونه نه غواړی، بلکه دا کارونه د دې قبرونو والؤ سره وابسته دې؟ که علمائے دیوبند د دې سوال په جواب کښ دا اووائي چه "د عمل تَعَلُّق د عقیدې سره دې، ترڅو پورې چه په کعبه کښ دننه د دفن شوو هستیانو په باره کښ شرکیه عقیده نه وي، د هٔغه وخته پورې دا ګمان هم نه شي کیدې چه طواف او سجده کعبې ته نه ده بلکه قبرونو ته کیږي" نو عرض دې چه دغه شان د اولیاءُ الله مزارونو ته تللو والا هم د قبرونو والؤ سره شِرکِیه عقیده نه لري، بلکه زیارت کوونکي، د اولیاؤ په قبرونو حاضریږي او د الله نه غواړی او هیڅ کله د قبر طواف یا د قبر په اړخ سجده نه کوي، نو په دې حقیقت باندې د پوهیدلو باوُجود ربښتیني سُنّی مسلمانانو ته مُشرِك وئیل څومره ظُلم او زیاتې دې، داسي وئیونکي بیشکه ظالِمَان دي. الله پاك دِ مونږه د دوئي د شر نه **محفوظ** اوساتي. (د جوہانس برگ سے بریلی مصنّف او د هغه ملګري د خپل تهانوی آخري کتاب بوادِرُالنوادر نه د اولیاءُ الله عظمت او فضیلت حال معلومولو د پاره "اٹھائیس واں غریبہ" ضرور اولولئ)

اے دیوبندیانو وهابیانو! که تاسو په غیرُ الله کښ یو څیز (د کعبې کانړو) طرف ته د سجدې کولو باوجود هم مسلمانان ګڼړلي شئ، صِرف

په دې وجه چه ستاسو په نِزد حقیقی مسجود هغه کاڼي نه دي، بلکه مسجودِ حقیقی د الله تعالٰی ذات دې،نو د اولیاءُ الله په مزارونو حاضري کوونکي رښتینی مسلمانان چه کله دا وائي چه ''مونږه د الله نه سوال کوو، خو د الله تَعَالٰی د نیازبینو بندګانو خوا ته ورځو او هلته سوال کوو او زمونږه حقیقی مقصود او مطلوب الله دې'' نو تاسو بیا په دې رښتیني مسلمانانو باندې د شرك د فتوو ډزې ولې کوئ؟

د عقل ړندو! تاسو شاید نه پوهیږئ، خو دا حقیقت دې چه د دِین و ایمان دولت او د اَللّٰهُ وَحُدَہٗ لَاشَرِیْك په بارګاه کښې د سر ښکته کولو او د هغه د بندګئ طریقه، او د هغه نه د غوښتلو طریقه دې اولیاؤ مونږ ته رازده کړي ده، کومو هستیانو ته چه تاسو د ډیر زیات سپك نظر په وجه په ''غیرُ الله'' وئیلو نه ستړي کیږئ، او مونږه سُنیان، په محبت او تعظیم هغوئي ته په ''اَهلُ الله'' وئیلو نه ستړي کیږو. د دې اهلُ الله په برَکت مونږ ته نیغه لاره نصیب شوي ده. دا هٰغه آستانې دي چه د الله مخلوق ته ترې رهنمائي او هدایت نصیب شوې دې. په دې وجه مونږه کله کله د دې آستانو د زیارت کولو او په دې آستانو کښې د موجودو اهلُ الله در ته د هغوئي سره د خپل عقیدت او نسبت د تصدیق او پوخ والي د پاره ځُو راځو. رښتیا دي او بیشکه رښتیا دي چه دا الله والا د الله د رحمت دروازې دي او که د دوئي آستانې نه وې نو الله تعالٰی مو نه شو موندلې.

* **محترمو لوستونکو!** ستاسو د یقین مضبوطولو د پاره د خوږ نبی صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ یو حدیث هم وړاندې کووم . د الله تعالیٰ خوږ نبی صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ فرمائي: **"ما ته هیڅ کله د خپل اُمَّت نه د شِرك یَره نشته خو دا اندیښنه ضرور ده چه زما اُمَّت به د دُنیا سره زیاته مینه شروع کړي."**

دا حدیث شریف (نمبر ٤٠٤٢)، بخاری شریف،کتابُ المَغازی کښې موجود دې. بیشکه مونږه د الله د خوږ نبی ﷺ اُمتیان یو، چه کله زمونږه نبی ﷺ زمونږ نه د شِرك څه یره نه لري نو د دې فتوٰی بازو مفتیانو د شِرك په فتوو مونږه هیڅ کله هم نه مُشرِکان کیږو. **یاد ساتئ!** چه مونږه د الله په نِزد مشرکان نه یو او زمونږه عقیدهٔ توحید د قرآن و سنَّت مطابق سلامته ده، نو مونږه د الله په فضل و کرم رښتینی مسلمانان یو. د الله تعالیٰ نه دُعا ده چه هغه دِ مونږه په حق باندې ثابت قدم لري او د دیوبندی وهابی تبلیغی ډلو خلقو د شر نه دِ حفاظت او امن راکړي.

د شرك نه پس اوس، د کتاب و سنَّت نه د "**بدعت**" په باره کښې مختصر لږ څه عرض کووم . ( اِنْ شَآءَاللّٰہُ تَعَالٰی د دې خادم اراده ده چه د "**بدعت کی حقیقت**" په موضوع به یو مکمل کتاب لیکم، چه په هغې کښې د علمائے دیوبند د تحریرونو نه خپل رښتینې مؤقف ثابتووم.)

* **محترمو لوستونکو!** هر رښتینې مسلمان ښه پوهیږي چه د ایماني عقیدې بنیاد قرآن وسُنَّت دې. د یو امام، مُجتهِد یا مفتی کوم یو قول

یا فعل کوم چه د شریعت او سُنَّت مطابق نه وي، هغه هیڅ کله قابلِ قبول او شرعی دلیل نه شي کیدې. په دې کائنات کښې هیڅ چا ته دا اختیار نشته چه هغه د قرآن وسُنَّت احکام صرف په خپله رائے بدل کړي. کومو خلقو چه د قرآن وسُنَّت د احکامو په مقابَله کښې خپلې رائے ته ترجیح ورکړه او خپله رائے ئې اهمه ګنړلي ده، هغه ځپله هم ګمراه شو او نور خلق ئې هم ګمراه کړل. د شریعت او سُنَّت خو دا اُصول دې چه ''چا د قرآن تفسیر په خپله رائے اوکړو هغه ځان له دوزخ کښې ځائ جوړ کړې دې.'' دا خو کیدې شي چه د یو مفتی فتوٰی د قرآن وسُنَّت مطابق د نه کیدو په وجه غلطه وي، خو دا هیڅ کله نه شي کیدې او نه د دې تَصَوُّر کیدې شي چه د قرآن و سُنَّت حکم غلط وي. که د چا عقل او پوهه پرې کار اُونکړي نو دا د هغه د عقل او پوهې کمې دې، چه د هغې د پاره هغه ته د خپل عقل علاج کول پکار دي.

* **محترمو لوستونکو!** دا اُصول دي چه **(تَعْرِفُ الْاَشْيَاءُ بِاَضْدَادِهَا)** ''هر څیز د خپل ضِد [یعني مخالف] نه پیژندل شي.'' سُنَّت او بدعت دواړه مقابل [یعني مخالف] څیزونه دي. د عربو په لغت او اصطلاحِ شریعت کښې د سُنَّت معنٰی ''طریقه'' ده. د احادیثِ رسول ﷺ مطابق هغه طریقه، د ذاتِ رسول ﷺ او د هغوئي د خلفائے راشدینو او د کاملو تابعدارانو طریقه ده. د لغت مطابق ''بدعت'' هر نوي پیدا کیدونکي

خبري (هر نوي پیدا شوي امر) ته وائي او په اصطلاحِ شریعت کښې مطلق بدعت هغه کار دې کوم چه د شریعت او سنَّت نه ثابت نه وي. یعنی د بدعت شرعی مفهوم دا دې چه په دِین کښې څه داسي زیاتوالې (یا کمې) قولاً یا فِعلاً، ښکاره یا اشارةً د شریعت و سُنَّت نه ثابت نه وي. او د کوم عبادت، عادت، عقیدې او عمل چه د شریعت و سنَّت نه ثبوت یا دلیل و نظیر اوموندلې شي، هغې ته هیڅ کله شرعي بدعت نه وائي.
د ډیرو صحیح احادیثو نه ثابت دي چه د رسولِ اکرَم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ اصحابو داسې ډیر اعمال او اذکار او دُعاګانې اختیار کړي دي چه هغه حُضُورِ اکرَم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ نه دي کړي، نه ئې د هغې حکم کړې دې او د صحابهٔ کرامو دا عقیده وه چه دا اعمال په دې "خیر" کښې داخل دي کوم چه د دِینِ اسلام مقصد دې. څنګه چه په قرآنِ پاك کښې د الله تعالٰی ارشاد دې: **وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ** (تاسو د خیر کار کوئ په دې اُمّید چه کامیاب شئ.)

حُضُورِ اقدس صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ فرمائیلي دي چا چه په اسلام کښې ښه طریقه رااووِیستله نو د هغه د پاره د هغه (طریقې د راوِیستلو) اجر و ثواب دې او څومره خلق چه په هغه طریقه باندې عمل کوي د هغوئې د ثواب مجموعي ثواب هم (د طریقې راوِیستلو والا د پاره) دې او دا چه د وروستو [خلقو] د پاره به هم (د هغه عمل په کولو) په اجر کښې کمې نه کیږي.... (مُسْلِمْ شَرِيف). (هُم دا حدیث په تذکرةُالرشید،ج١،صفحه١١٥ کښې د رشید احمد

ګنګوهي په مکتوب [يعني خط] کښې او په کمالاتِ اشرفيه، صفحه ۱۱۳ او د بوادرالنوادر صفحه ۳۵۳ کښې هم کتلې شئ)

د دې ارشاد ګرامي دا مقصد هيڅ کله نه دې چه که هر څوك کومه نوي طريقه غواړي نو اختيار دِ ئې کړي، بلکه د هرې نوې طريقې د پاره په اسلام کښې قواعد وضوابط مقرر دي، لِهٰذا ضروری او لازمی ده چه کومه نوي طريقه راويستلې شي هغه د اسلام د قواعدو او ضوابطو او دليلونو او شواهِدو په دائره کښې وي، يعنی د هرې نوې طريقې د شريعت و سُنَّت مطابق کيدل ضروری دي. شريعت و سُنَّت چه کومې طريقې ته ښه اووائي، هغه ښه ده او کومې [طريقې] ته چه شريعت و سُنَّت ښه اُونه وائي، هغه هيڅ کله ښه نه ده. خو د دې فيصله به د شريعت و سُنَّت د اصل روح مطابق کيږي، صرف د چا په ذاتی رائے به نه کيږي.

د حضرت سَيِّدُنا بلال حَبَشي رَضِيَ اللهُ تعالیٰ عَنْهُ واقعه ده، حُضُورِ اکرَم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ هغوئي ته اوفرمائيل: ما په جنَّت کښې ستا د قدمونو ښکالو [يعني اواز] اوريدلې دې، ته کوم خاص عمل کوې؟ هغوئي عرض اوکړو، زه هر ځل د اوداسه نه پس دوه رکعته نمونځ کووم. (بُخاری، مُسلم، احمد، ترمذی، حاکم) حُضُورِ اکرَم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ هغوئي ته د دې حکم نه وو کړې. د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ تعالیٰ عَنْهُ د دې مبارَك عمل فضيلت او ثواب ښکاره کولو د پاره حُضُورِ اکرَم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ د هغوئي نه د نورو صحابؤ په مخکښې پوښتنه اوکړه چه ټولو ته معلومه شي چه د "خير کار" بهرحال

د خير کار دي او په دي باندې ثواب دې، چنانچه حُضُورِاکرَم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمَ د حضرت بلال رَضِیَ اللّٰہُ تَعَالٰی عَنْہُ د دې طريقې ستائنه اوکړه. په صحيح بُخاری شريف کښې دي چه حضرت خباب رَضِیَ اللّٰہُ تَعَالٰی عَنْہُ هغه وړومبې شهيد دې، چا چه د قيد په حالت کښې د شهيد کيدو نه مخکښې د دوه رکعته نمونځ ادا کولو سُنَّت قائم کړو. حُضُورِ اکرَم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمَ يو ځل په نمانځه کښې، د رکوع نه د اوچتيدو په حالت کښې چه "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَه" اوفرمائيل نو يو صحابی (مقتدي) د "رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ" سره سره د "حَمْدًا كَثِيْرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيْهِ" الفاظ هم اووئيل. د نمونځ په ختميدو باندې سرورِعالَم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمَ تپوس اوکړو چه دا کلمات چا وئيلي وو؟ ما د ديرشو نه زياتې فرښتې په رامنډه اوليدلې، په هغوئې کښې د هرې فرښتې دا کوشش وو چه هغوئې هٔغه کلمات اوليکي. يعنی د هٔغه کلماتو اداکول د ډير زيات اجروثواب سبب اوګرځيدل. (بُخاری و مُسلم)

دغه شان ډير زيات واقعات دي، چه د هغې نه دا ثابتيږی چه د شريعت و سنَّت په دائره کښې د اوسيدو سره سره چه کوم د خير کار اوشي، هغه نيکی ده او نيکئ ته مطلقاً بدعت نه شي وئيل کيدې. ثابته شوه چه د شريعت و سنَّت په دائره کښې د اوسيدو سره په مُعامَلاتو کښې ډيره فراخي ده. هر هغه کار د کوم د جائز کيدو چه شريعت و سنَّت ګواهی ورکړې وي او نه هغه د يو نص مخالف وي او نه د هغې

نه څه سخته فِتنه او فساد پیدا کیږی، هغه هیڅ کله بدعت نه دي. دِینِ اسلام، د هرې زمانې او د هرې علاقې د مسائلو حل پیش کوي او د زمانو او قومونو د بدلیدو سره سره، نوي نوي واقعات پیښیږي او پیښیږي به.که د داسې مسائلو اسلامي حل ته صرف بدعت او گمراهی اووئیل شي نو دِین به مکمل ضابطه حیات څنګه ګڼړلې شي؟

افسوس دې په هغه خلقو څوك چه د شریعت و سُنَّت مطابق اعمالو او نیکو کارونو ته په بدعت وئیلو نه ستړي کیږي، هغوئي د هُغه بدعتونو نه غافله دي د کومو انجام چه د ایمان او د ایمان والؤ د تباهئ نه سِوا بل نشته، مغربی طرزِ حکمرانی چه هغې ته"جمهوریت" وائي بیشکه بدترین بدعت دې او د میلادِ رسول خوشحالئ کولو ته بدعت وئیونکي د دې طرزِ حکومت ښه ستائنه کوي. دا د اسلام د دُښمنانو خطرناك سازش دې، دې بد بدعت مسلمانانو ته د شریعت وسُنَّت د تابعدارئ په ځائ د دې طاغوت [یعني د شیطان] اطاعت زده کړې دې، چه هغې ته د "ملکی قانون یا د آئین" نوم ورکول کیږي. د الله تعالٰی د حکم په تعمیل کښ په نبـی پاك صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ باندې په محبت سره درود وسلام وئیلو والؤ ته "بدعتی" وئیلو والا او ځان ته د دین ټیکداران وئیلو والا [دا دیوبندیان وهابیان تبلیغیان] د حکمرانئ متعلق د دې بد بدعت خلاف هیڅ څه نه وائي حالانکه په دې کښ خومره مسلمان ملکونه اخته شوي دي، بلکه په پاکستان کښ اکثر

ديوبندی وهابي علماء صرف د دې جمهوريت د ترقۍ د پاره نه صرف د ښځې د حکومت حمايت کوي، بلکه يو ديوبندي عالم د دې ښځې د مشير په عهده باندې مقرر دې، چه د هغې [يعني د ښځې] امارت بيشکه د قرآن وسُنَّت ښکاره خلاف دې. صرف دا نه بلکه هغه د ښځې د بادشاهۍ په جائز کيدو باندې زور ورکوي او د ښځې بادشاهۍ ته ناجائزه وئيونڪو ته بد وائي.

د "*جوہانس برگ سے بریلی*" په پارټ ۱ صفحه۱۰ کښې دا حديث نقل شوې دې چه "هر بدعت ګمراهی ده او هر بدعتی به دوزخ ته ځي." د دې حديث نقل کولو سره د کتابچې مصَنِّف زمونږ په باره کښې دا ثابتول غواړي چه دا اهل سنَّت و جماعت (د هغه د وَينا مطابق) بدعتيان دي. دا لوئ بهتان دې او د دې بهتان سزابه دې ديوبنديانو وهابيانو ظالمَانو ته ورکړې شي.

حضرت امام نَوَوي رَحمَةُاللهِ عَلَيه د دې حديث په شرح کښې فرمائي چه په دې حديث کښې د بدعت نه مراد، هغه (کارونه) بدعتونه دي چه د هغې (کارونو) د صحيح کيدو په باره کښې د شريعت وسُنَّت څه دليل او مثال نه وي او د کوم کار صحيح کيدل چه د شريعت و سنَّت نه په کومه يوه طريقه ثابت دي، هغه هيڅ کله بدعت نه دې.

کتاب تَهذِيبُ الاَسمَاءِ وَاللُّغَات، ج۲، ص۲۲،۲۳ کښې امام نَوَوی رَحمَةُاللهِ عَلَيه د مشهور امام ابو محمد عبدالعزيز عِزُّ الدين بن عبدالسلام رَحمَةُاللهِ عَلَيه د

كِتَابُ الْقَوَاعِد نه نقل كړي دي چه د بدعت پينځه قسمونه دي: واجبه، محرَّمه، مندوبه، مكروهه او مباحه. هغوئي د دې پينځـؤ قِسمونو تفصيل هم ليكلې دې. هغوئي د امام شافعی رَحۡمَةُاللهِعَلَيۡه فرمان نقل كړې دې، فرمائي: "يو بدعت سَيِّئَه دې او يو بدعت حَسَنَه دې. بدعتِ سَيِّئَه هغه دې كوم چه د يو شرعی دليل خلاف وي، داسې بدعت، بدعتِ ضلالت دې، او بدعتِ حَسَنه هغه دې كوم چه د عهد اوّل د يو امر خير او شرعی دليل خلاف نه وي، داسې بدعت، بدعتِ حسنه دې."[1]

په حديث شريف كښې د بدعت د غندنې نه مخكښې د شَرُّ الْاُمُورِ مُحۡدَثَاتُهَا الفاظ دي. (مُسۡلِم، مِشۡكوٰة) د الله په عطا د غيب عِلم لرلو والا رسولِ كريم صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَآلِهٖ وَسَلَّم په دې ارشاد كښې (د څه قيد نه بغير ټول) بدعات ګمراهي قرار كولو نه مخكښې د "شَرُّ الْاُمُور" (يعني د بدو كارونو) الفاظ اوفرمائيل او دا ئې واضحه كړه چه "نوو ښو كارونو" ته به هيڅ كله بدعت او ګمراهي نه وئيل كيږي. او د جوہانس برگ سے بریلی مصنف نقل كړې شوي دويم حديث شريف "مَنۡ اَحۡدَثَ فِيۡ اَمۡرِنَا هٰذَا مَا لَيۡسَ مِنۡهُ فَهُوَ رَدٌّ" (بخاری و مُسلم) كښې د "فِيۡ اَمۡرِنَا" الفاظو نه د علمائے ديوبند مطابق هم دا واضحه شوه چه په "دِين كښې" يوه نوې خبره راوِيستل غلط وي خو د "دِين د پاره" نوې انداز وغيره به غلط نه وي. چنانچه د ديوبنديانو

---

1 د علمائے ديوبند تصديق كړې شوي كتاب "الدرر المُنَظَّم" ص ۱۰۹ (مطبوعه، مجتبائی، دهلی) كښې هم دا حواله موجود ده.

مشهور مفتي محمد شفيع صاحب د خپل کتاب ”سُنَّت وبدعت“ په صفحه ۱۱، ۱۲ کښې فرمائي چه:

”کوم عبادتونه چه د نبـي اکرَم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهِ وَسَلَّمْ يا صحابهٔ کرامو نه قولاً يا فِعلاً، صراحةً يا اشارةً ثابت وي هغه هم بدعت نه شي کيدې .....د کوم کار ضرورت چه په عهدِ رسالَت کښې موجود نه وو، وروسته د يو ديني مقصد حاصلولو د پاره پيدا شو،هغه هم په بدعت کښې داخل نه دې، (نور فرمائي چه) په احاديثو کښې منع د اَحۡدَاثٌ فِي الدِّيۡن(په دين کښې د نوې خبرې راوِيستلو) راغلي ده، اَحۡدَاثٌ لِلدِّيۡن (د دين د پاره د نوی خبرې راويستلو) نه ده راغلي.“

اشرفعلي تهانوي صاحب فرمائي: ”د بدعت حقيقت خو دا دې چه هغه دين اوګنړي او اختيار ئې کړي، که علاج ئې اوګنړي او اختيار ئې کړي نو بدعت څنګه کيدې شي؟ پس يو اَحۡدَاثٌ لِلدِّيۡن دې او يو اَحۡدَاثٌ فِي الدِّيۡن دې. اَحۡدَاثٌ لِلدِّيۡن معنٰى سُنَّت ده.“

(الاضافات اليومية، ج۱، ص ۲۴۲، مطبوعه مکتبه دانش، ديوبند)

هُم دا تهانوی صاحب فرمائي: ”بدعت کله واجب وي لکه اَدِلَّه [يعني دلائل] جوړول او د نحو وغيره تعليم، او کله بدعت مستحب هم وي لکه رباط [سرائے] مدرسه وغيره جوړول او تهول نيك کارونه کوم چه په وړومبئ زمانه کښې نه وو.“ (بوادِرُ النَّوادر، ص ۷۷۷)

جناب اشرفعلی تهانوی، په ارواحِ ثلاثه صفحه ۱۳۹، ۱۴۰ کښې ليکي:

"د جناب رسولُ الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ قوت اضافه ډیر کامل وو په دې وجه د صحابؤ د باطن د اصلاح د پاره صرف د هغوئي تعلیم کافي وو او هغوئي ته د اِشْغَالٌ مُتَعَارِفَةٌ بَیْنَ الصُّوْفِیَّة [یعني داسې مشغولتیا څنګه چه صوفیاء کوي د هغې] ضرورت نه وو او د دې اِشْغَالو نه بغیر به د هغوئي اصلاح کیدله. د جناب رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ نه پس ورو ورو دا قوت په کمیدو شو او حالت دې له راغې چه صوفیاءُ ته د اصلاحِ باطن د پاره د اِشْغَالِ مُتَعَارِفَه په مثل د ذِکر بالجهر و حبس دَم و پاسِ اَنفاس وغیره نه د مدد اخستلو ضرورت محسوس شو او هغوئي د اِشْغَالِ مُتَعَارِفَه نه کار واخستو. دا اِشْغَال د جناب رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ په زمانه کښې نه وو، په دې وجه بدعت وو، خو بِدْعَتٌ فِي الدِّیْن نه وو بلکه بِدْعَتٌ لِلدِّیْن وو، یعني دا کارونه په دین کښې نه وو داخل کړې شوي، بلکه کوم کارونه چه شرعا مامور بهٖ [یعني حکم کړې شوي] وو، هغه ئې د هغې د حاصلولو ذریعه جوړه کړه، څکه دا اِشْغَال لِلدِّیْن وو نه چه په دِین کښې داخل وو. په دې ځان داسې پوهه کړئ چه یو طبیب په نسخه کښې شربتِ بنفشه اولیکو، مریض ته د شربتِ بنفشه ضرورت دې، خو په بازار کښې شربتِ بنفشه نشته، څکه هغه لرګي راوړي، اور بلوئ، پتیله راوړي، چیني راوړي، اوبه راوړي، بنفشه وغیره راوړی او شکر او بنفشه وغیره په پتیله کښې اچوي او په اور ئې پخوي او شربتِ بنفشه جوړوي او نُسخه پوره کړي نو دا لرګي راوړل، اور بلول وغیره په نُسخه کښې

زیاتوالې نه دې بلکه نُسخه مکمل کول دي. نو هم دغه شان اوګنړئ
چه د مرتبې حاصلول احسان او د نفس د اصلاح شرعاً حکم کړې
شوې دې او شریعت د هغې څه خاص طریقه نه ده مقرر کړي، ځکه
دا حکم کړې شوې چه په کومه جائزه طریقه حاصلیدې شي هغه
طریقه دِ اختیار کړې شي او هغه خاص طریقه به جُزْفِي الدِّین نه وي
خو ذریعه د دین به وي."

دلته د لوستونکو د پاره دا وضاحت هم ضروري دې چه دا اُصول
دي چه د یو څیز نه واجب کیدل، یا نه نقل کیدل د هغې د ناجائِزه
کیدو دلیل نه شي کیدې، یعني که یو کار واجب یا لازمي نه وي نو د
دې هیڅ کله دا مطلب نه دې چه هغه کار جائز او صحیح هم نه وي،
ځکه چه اصل په څیزونو کښې اباحت [یعني مُباح کیدل] دي او که د
څه څیز یا کار وغیره منع یا ناجائز کیدل د کتاب وسنت نه ثابت نه
وي، نو هغه څیز یا کار ته څوك صرف په خپله ذاتی رائے ناجائز یا
غلط نه شي وئیلې، ګنې داسې کوونکې به د اَحْدَاثُ فِي الدِّیْن کیدلو
والا ګنړلې کیږي ځکه چه صرف په خپل عقل او ذاتی رائے باندې
یقین کول او یو نیك او جائز کار ته بد یا غلط وئیل هیڅ کله څه
نیکي نه ده بلکه سخته غلطي ده او بد بدعت دې.

موجوده دیوبندي وهابي تبلیغي ځان ته علمائے حق وئیولو والا د
اللّٰه تعالیٰ نه بالکل نه یَریږی ګنې اَهلِ علم ښه پوهیږي چه هغه نوي

کارونه په کومو کښې چه يو مثال په بل مثال محمول کړې شوې وي هغه د امامانو سنت دي.په داسې مُعامَلاتو کښې د غلطو خبرو کوونکو ديوبندي وهابي علماؤ حال دا دې چه که چرې يو نص په څه طريقه د خپل خيال مطابق اومومی نو فتوٰی پرې ورکوي او د هغه يو نص نه سِوا نور نصونه، قاعدې، مطالب، د اهلِ علم صحيح بيانونه او د صحابۂ کرامو او د هغوئي د رښتيني کاملو اتباع کوونکو ارشادونه د خپل جهالت په سبب هيڅ نه ګڼړي. د دې خلقو دا حال دې چه دوئي ته اووئيل شو چه تاسو د "**بدعت**" تعريف اوکړئ. اوئې وئيل: "کوم څيز چه د رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ په زمانه کښې نه وو او اوس دې هغه بدعت دې." په دې تعريف باندې د هغوئی محاسبه اوکړې شوه، کله چه هغوئی پوهه شو چه په دې تعريف کښې خو هغوئي نښلي نو په لفظ بدلولو مجبور شو اوئې وئيل: "کوم کار چه د حُضُورِ اکرَم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ په زمانه کښې نه وو شوې بلکه د هغوئي نه وروسته اوشو، هغه بدعت دې." په دې تعريف هُم دوئي خپل ځان د سخت بدعتي کيدو نه بچ نه کړې شو نو بيا ئې اووئيل چه د "بدعت معنٰی په دِين کښې زياتوالې دې." په دې باندې هُم دوئي ثابته نه کړې شوه چه د زياتوالي نه مراد څه دي؟ بلکه د شريعت و سُنَّت تابِع هر هغه کار او هره هغه صحيح خبره، کومو ته چه دا خلق په دين کښې زياتوالې وائي، هغه هر څه د دوئي د کتابونو او د دوئي د خپل عمل نه هم ثابت وو، نو بيا دوئي په

مختلفو الفاظو اخوا دیخوا کول شروع کړل او وئیل ئې چه صِرف لفظي جګړه ده خو حقیقت خپل ځان ښکاره کوي، چنانچه هغه دیوبندي وهابی تبلیغي علماء هم په دې لیکلو مجبوره شو چه د بدعت قِسمونه دي. بدعت (حسنه) ښه هم وي او (سَیِّئه) بد هم وي.[1]

**محترمو لوستونکو!** علمائے دیوبند د بدعت په مفهوم باندې د شروع نه په جګړه دي. چنانچه رشید احمد ګنګوهی خپل پیر و مرشد حاجـی امداد الله صاحب ته غیر عالِم وئیلي دي او د خپل پیر و مرشِد موقَف ئې غلط قرار کړې دې او وئیلي ئې دي چه پیر صحیح کول د مُرید کار دې. هم دغه ګنګوهي تهانوی ته هم غلط وائي. د جوہانس برگ سے بریلی مصنِّف او موجوده علمائے دیوبند خپل اشرفعلی تهانوی ته "مُجَدِّدِ مِلَّت او حکیمُ الاُمَّت" وائي او جناب رشید احمد ګنګوهی

---

1 واضحه دِ وي چه علمائے دیوبند تبلیغي جماعت او دغه شان طرزِ تبلیغ ته بدعتِ حسنه لیکلي دي. اوګورئ: "اُصولِ دعوت و تبلیغ" (مصنِّف جناب عبدالرحیم شاه) او د دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د امام شاه اسماعیل دهلوی فتوٰی د "الدرر المُنَظَّم" په صفحه ۱۰٤، ۱۰۵ کښې موجوده ده. په دې کښې د بدعت دواړه قسمونه، حسنه او سَیِّئه مني، او د امام شافعی قول نقل کوي چه "امام شافعی فرمائیلي دي چه کوم نوې څیز د کتاب و سُنَّت او د اجماعِ اُمَّت یا د یو اثر مخالف وي، هغه بدعت ضاله دې او کومه نوې خبره چه د خیر په قِسم کښې داخله وي او د کتاب و سُنَّت مخالف هم نه وي او نه د اجماع خلاف وي، هغه بدعتِ محموده دې. حاصل دا چه د بدعتِ حسنه په مندوب کیدو باندې اتفاق دې." په دې فتوٰی کښې اسماعیل دهلوی د علامه ابن حجر د استاد په حواله د یومِ میلادِ [یعني د پیدائش په ورځ] اختر [یعني خوشحالی] کول هم په بدعات حسنه کښې د ټولو نه ښه منلي دي.

په خپل مکتوب کښې تهانوی ته ليکي: "تاسو د بدعت په مفهوم لا تر اوسه نه ئې پوهه." (تذکرۃُالرشید، ج۱، ص۱۲۲)

لوستونکي به ښه پوهه شوي وي چه دا ديوبنديان وهابيان خلق صرف د خپل ذات حفاظت غواړي. د دينِ اسلام د ښکلو اُصولو د حفاظت هيڅ پرواه نه لري. دې ته د قدرت کرشمه اووائې چه هر هغه کار کوم ته چه دوئي صرف بدعت او ګمراهي وائي او [د هغه کارونو کولو په وجه] په مونږه سُنيانو باندې د بدعتي کيدو فتوې لګوي، هغه ټول کارونه دوئي پخپله هُم هغه شان بلکه د زيات شِدَّت سره کوي. دې خادم مخکښې هم عرض کړې دې او د اللّٰه تَعَالٰی په فضل په پوره اعتماد سره بيا عرض کوي چه زما سره دستاويزی [يعني ليکلي] ثبوتونه موجود دي. ميلاد شريف، د سيدنا امام حسين رَضِیَ اللہُ تَعَالٰی عَنْہُ د شهادت د ذکر مجلس، جلوس، د فاتحه او ايصالِ ثواب د پاره د قرآن ختم کول وغيره تاريخ، ځائ، د وخت اعلان، کليز تعين کول او د اشتهاراتو په ذريعه د عُرس او کليزې او په مزاراتو باندې د حاضرئ وغيره ټول اعمال دا ديوبنديان وهابيان تبليغيان پخپله هم کوي خو د شِرك او بِدعت فتوې دوئي صرف زمونږ د سُنيانو د پاره خاص کړې دي، د دې صفا او ښکاره مفهوم دا دې چه کوم عمل د هغوئي د فتوو مطابق غلط وي نو هغه کار که هغوئي پخپله اوکړي نو جائز دې او که بل څوك ئې اوکړي نو ناجائزه دې.

**محترمو لوستونکو!** تاسو پخپله اووائې چه دا د دِین سره تړوقې نه دي نو څه دي؟ او د دې باوجود ځان ته د علمائے حق وئیلو دعویٰ کوي، حالانکه دوئي ته که د دِین ډاکوان اووئیل شي نو غلطه به نه وي. زمونږه دُعا ده چه اللّٰه تَعَالیٰ دِ د دوئي د شر نه مونږه په خپل امان کښې اوساتي.

**محترمو لوستونکو!** دې خادمِ اهلِ سُنَّت په خپل کتاب ''**د دیوبند نه بریلی ته** (حقیقت)'' کښې عرض کړي دي چه د دې خلقو مقصد مسلمانان د رُوحِ اسلام نه لرې کول دي او دا کار دوئي د خپلو غیرمسلمو مشرانو په اشاره او د هغوئي نه د امداد حاصلولو په وجه کوي او سادَګان مسلمانان کوم چه د حقیقت نه د نه خبریدو په وجه د دې چالاکو په مکر او دوکه کښې ګیر شوي دي، هغوئي نه پوهیږي چه دې دیوبندیانو وهابیانو هغوئي د تباهئ کومو تورو غارونو ته روان کړي دي. د نمونځونو تلقین خو د دوئي ښکاره جال دې، پخپله د تبلیغی جماعت د بانی محمد الیاس صاحب ګواهي وړاندي کووم، د خپل ''دعوت'' په صفحه٦ کښې فرمائي: ''میاں ظهیرالحسن! زما په مطلب خوك نه پوهیږي، خلق دا ګنړي چه دا (تبلیغی جماعت) تحریكِ صلٰوة دې. زه په قَسم سره وایم چه دا هیڅ کله تحریكِ صلٰوة نه دې. یوه ورځ ئې په ډیر افسوس سره اوفرمائیل: میاں ظهیرالحسن، یو نوې قوم پیدا کول دي.'' (محمد الیاس اور ان کی دینی دعوت، ص١٩٩،

مرتب ابوالحسن علی ندوی،مطبوعہ مجلس نشریات اسلام، کراچی)

څه فرمائي ديوبندي وهابي تبليغي علماء او عوام، د خپل الياس صاحب د دې بيان په باره کښې؟ څوك رښتينې دې؟ كه الياس صاحب ته رښتينې وائي نو کوم تبليغيان چه تبليغی جماعت ته تحريكِ صلاة وائي بيا دا ټول دروغژن دي ،كه دا ټول ځان ته رښتيني وائي، نو بيا د دوئي باني دروغژن جوړيږي. او لوستونکي به ښه پوهه شي چه دوئي واړه او لوئ ټول دروغژن دي. اللّٰہ تَعَالٰی دِ مونږ ته د دوئي نه امان راكړي.

څه موده مخکښې د ديوبنديانو وهابيانو د طرف نه د ديوبنديانو د شيخ الحديث محمد زکريا صاحب کاندهلوی په کتاب ''فضائل اعمال'' (چه د هغې وړومبنې نوم تبليغی نصاب وو) باندې اعتراض اوشو. په اعتراضونو کښې يو اعتراض دا هم شوې وو چه د ''تبليغی جماعت'' خلق، د ديوبند د غټو غټو علماؤ کتابونه شا ته غورزوي، او ورانوي ئې، د تبليغي جماعت د خلقو سره صرف ''فضائل اعمال'' نومی کتاب وي، د اشرفعلي تهانوی او حسين احمد مدَنی وغيره کتابونه ورسره نه وي. د دې په جواب کښې شيخ محمد زکريا صاحب او محمد شاهد سهارن پوری صاحب اووئيل چه په تبليغی نصاب کښې شامل کتابونه د تبليغی تحريك د بنيادی اُصولو مطابق دي او د تحريك د اُصولو او مقصدونو مطابق ليكلي شوي دي. فرمائي چه: ''دا څه پټه خبره نه ده چه زمونږه مقصد خلق ديوبنديان جوړول دي، يعنی د (تبليغی جماعت

د باني) مولانا محمد الیاس صاحب د وینا مطابق، چه تعلیمات د مولانا اشرفعلی تهانوی وې او طریقه د مولانا محمد الیاس." نور فرمائي: "د تبلیغي جماعت یو زوړ او د شروع نه اُصول دا دې چه په تبلیغی جماعت او تبلیغی اجتماعاتو کښې دِ مسائل هیڅ کله بیان نه کړې شي." د دې وجه لیکي چه: "د (مسائلو بیانولو په وجه) د خلقو د زړه بدي کیدو او ناراضه کیدو اندیښنه ده او بیا د زړه بدي کیدو نه پس به په تبلیغی اجتماعاتو کښې خلق نه شریك کیږي."[1] (ملخصاً از کتب فضائل پر اشکالات اور ان کے جوابات، اور تبلیغی جماعت پر چند عمومی اعتراضات اور انکے مفصّل جوابات)

د جوہانس برگ سے بریلی مصنِّف او د هغه ملګري دیوبندیان وهابیان تبلیغیان حضرات د خپلو مشرانو د دې ارشاداتو نه ښه واقف دي. آیا د دې باوجود به هم هغوئي تبلیغی جماعت ته تحریكِ صلاة او اصلاحی تحریك وائي؟

**محترمو لوستونکو!** د کومو خلقو چه مقصد د قرآن و سُنَّت احکام نه ښودل دي، صرف د دې د پاره چه خلق به خفه شي، د هغوئي نه د حق د آواز توقع څنګه کیدې شي؟ پخپله اندازه اولګوئ چه د تبلیغي

---

1 په تبلیغی جماعت باندې د جناب ظفر احمد تهانوی سختو اعتراضونو لوستلو د پاره کتاب "تذکَرَةُ الظفر" هم اوګورئ. د دې نه علاوه د سعودی عرب یو وهابی نجدی مفتی حمود بن عبدالله د "القول البلیغ فی التحذیر من جماعت التبلیغ" په نوم یو کتاب لیکلې دې چه هغه "دار الصمیعی للنشر والتوزیع" ریاض چاپ کړې دې، چه په هغې کښې ئې د تبلیغی جماعت مشران مشرکان، بدعتیان او تبلیغی جماعت د منافقینو او ګمراهو خلقو ډله ثابته کړې ده او علمائے دیوبند ئې مشرکان او دجال قرار کړي دي.

جماعت خوار و زار ګرځيدو والا به بيا د څه تبليغ کوي. يقين اوکړۍ چه ديوبنديانو، وهابيانو د تبليغی جماعت ظاهر او باطِن يو شان نه دي، هغه د هاتي د غاښونو والا مثال دې چه د خوراك د پاره ئې نور وي او د ښودلو د پاره نور. منافَقت هُم دې ته وائي. اللّٰه تَعَالٰی دِ مونږه د دوئي نه او د دوئي د شر نه محفوظه اوساتي.

* د دوئي يو بل اعتراض او د هغې جواب هم اوګورئ: د "جوہانس برگ سے بریلی" په پارټ۲ ص۹ کښې د دې کتابچې مصنف د امامِ اهلِ سنت اعلٰی حضرت مولانا شاه احمد رضا خان بريلوی رَحمَۃُاللّٰہِ تعالٰی عَلَیْہ د چاپ شوي "وصایا شریف" د صفحه ۱۲ عکس چاپ کړې دې او يو اعتراض ئې کړې دې، حالانکه د عقل دې ړوند ته نه ښکاري چه په هغه عکس کښې د دغه اعتراض زبردست جواب موجود دې. خو رښتيا خبره ده چه تَعَصُّب او دُښمني ساتلو والا ته حق نه ښکاري، ځکه چه بې بنياده بُغض او دُښمني، نه صرف عقل ختموي بلکه بنده د سوچ او نورو صِفَتونو نه هم محرومه کړي. د دې ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو دا خيال وو چه په جنوبی افريقا کښې به د هغوئ د غندني ورې کارونه کامياب شي ځکه چه د جنوبی افريقې ټول مسلمانان د حقيقت نه خبر نه دي. هغوئي دا ګنړل چه د هغوئي هر دروغ به پټ پاتې شي خو هغوئي څه خبر وو چه هغوئي به پخپله د خپل هغه مشين ګن د کارتوسو نښه جوړيږي، د کوم مشين ګَن د فتوو د کارتوسو رُخ چه هغوئي د

رښتیني مسلمانانو په طرف کړې دې، چنانچه اوګورئ.

امامِ اهل سنت اعلٰی حضرت مولانا شاه احمد رضا خان بریلوی رَحمَۃُ اللہِ تعالٰی عَلَیْه د وصایا شریف آخري پیرا چه د هغې عکس د "جوہانس برگ سے بریلی" په پارټ۲ ص۹ کښې موجود دې، په هغې کښې اعلٰی حضرت بریلوی رَحمَۃُ اللہِ تعالٰی عَلَیْه فرمائي: "رضا حسین اور حسنین تم سب محبت و اتفاق سے رہو او حتَّی الامکان اتباع شریعت مت چھوڑو اور میرا دین و مذہب جو میری کتب سے ظاہر ہے، اس پر مضبوطی سے قائم رہنا ہر فرض سے اہم فرض ہے. اللّٰہ توفیق دے. والسلام."

[**ترجمه**: رضا حسین او حسنین تاسو ټول په محبت او اتفاق سره اوسئ او حتَّی الامکان د شریعت تابعداری مه پریږدئ او زما دین او مذهب کوم چه زما د کتابونو نه ظاهر دې، په هغې باندې مضبوط قائم اوسیدل د هر فرض نه اهم فرض دې. الله تعالٰی دِ توفیق درکړي. والسلام]

په دې پیراګراف کښې د جوہانس برگ سے بریلی مصنف ته صرف په دوو الفاظو اعتراض دې او هغه دوه لفظونه دا دي "میرادِین [یعني زما دین]" دا دوه لفظونه بنیاد جوړوې او دیوبندی وهابی تبلیغی دا ثابتول غواړی چه اعلٰی حضرت بریلوی (مَعَاذَالله) څه نوې دین راوِیستلې وو، ګنې "زما دین" والا الفاظ ئې ولې استعمالول؟

د دې اعترض اصولاً څه حقیقت نشته، ځکه چه پوره جمله کومه چه د "جوہانس برگ سے بریلی" په پارټ۲ ص۹ کښې موجوه ده هغه دا ده چه "میرادِین و مذہب جو میری کتب سے ظاہر ہے۔" [یعني زما دین و مذهب کوم

چه زما د کتابونو نه ظاهر دي] که د اعلیٰ حضرت رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ یو زر کتابونو یا په هغې کښې یو څو اوکتلې شي نو د دې حقیقت نه څوك انکار نه شي کولې چه اعلیٰ حضرت بریلوی رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ بیشکه د قرآن و سنت رښتینې مُبَلِّغ وو. د دِینِ اسلام رښتینې پاسبان او د مسلمانانو رښتینې مُحسِن وو. که د هغوئې په تصانیفو کښې یوه خبره هم د اسلام د رښتینې اصولو او قواعدو خلاف ثابته نه وي، نو دا اعتراض کول چه "**زما دِین**" نه مطلب د اسلام نه علاوه څه بل دین دې، نو دا صرف بیوقوفی او جهالت دې. ځکه چه اعلیٰ حضرت رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ صرف "**زما دِین**" الفاظ نه دي استعمال کړي بلکه پوره جمله دا ده چه "***میرا دِین ومذہب جو میری کتب سے ظاہر ہے***" [یعنې زما دین و مذهب کوم چه زما د کتابونو نه ظاهر دې] او د دې جملې نه مخکښې د شریعت د تابعدارئ الفاظ هم موجود دي. د دې باوجود که دیوبندي وهابی تبلیغی، حقیقت منلو ته تیار نه وي نو لږ دِ په غړیدلو سترګو د خپل کور حال اوګوری او سوچ دِ اوکړی چه پخپله خو دوئې ته د خپلې سترګې بَش نه ښکاري او د نورو په سترګو کښې خځنړې ګوري. الزامي جواب اوګورئ.

۱۹ رَمَضانُ المُبارَك، ۱۳۹۰هجری د سهارن پور په مدرسه مظاهرُ العلوم کښې کیدونکې د شیخ محمد زکریا صاحب کاندهلوی د یو مجلس په ملفوظاتو کښې (دیوبندی وهابی عالِم) تقی الدین ندوی مظاهري لیکلي دي چه، په دې مجلس کښې دیوبندی وهابی علماء منظور نعمانی

او ابوالحسن علی ندوی هم شریك وو. ارشاد ئې اوفرمائیلو: ”زمونږ مشران حضرت (رشید احمد) ګنګوهی او حضرت(قاسم) نانوتوی چه کوم دین قائم کړې وو، هغه مضبوط اونیسئ، اوس قاسم او رشید بیا نه شي پیدا کیدې، بس د هغوئي په تابعدارئ کښې اولګئ.“

(صحبتے با اولیاء، ص ۱۲۵، مطبوعه ایچ، ایم سعید کمپنی ناشران کتب، کراچی ۱۹۸۲ء)

**محترمو لوستونکو!** د ذِکر شوي عبارت څه الفاظ د توجُّه قابل دي. د دیوبندی وهابی تبلیغی جماعت مشر، شیخ محمد زکریا صاحب کاندهلوی الفاظ لږ په غور سره اوګورئ. هغه وائي ”کوم دِین چه ګنګوهی او نانوتوی قائم کړې دې.“

که څوك د دې الفاظو مطابق دا اووائي چه ”ګنګوهی او نانوتوي نوې یا جُدا دین قائم کړې وو“ نو دا دیوبندیان وهابیان تبلیغیان دِ د خپلو دواړو مشرانو کتابونه نه ښائي ځکه چه دوئي هیڅ کله دا نه شي ثابتولې، چه دواړه د اسلام مبلغ وو، ځکه چه اوّل خو د دوئي دواړو په کتابونو کښې کُفریات هم موجود دي، دویمه دا چه د زکریا صاحب په الفاظو کښې د ”کوم دِین“ الفاظو نه پس صرف د ګنګوهي او نانوتوی نومونه دي، د هغوئي د کتابونو ذِکر پکښې نشته، د دې نه علاوه زکریا صاحب، صرف د ګنګوهی یا د نانوتوی د تابعدارئ تاکید کوي، د شریعت د تابعدارئ بالکل تاکید نه کوي.

او واورئ، په تذکرةُ الرشید، ج۱، ص ۱۱۳ کښې دي: ”وَاللّٰهِ الْعَظِیم

مولانا تھانوی کے پاؤں دھو کر پینا نجاتِ اُخروی کا سبب ہے“ [ترجمه: قَسم په خدائے چه د تهانوی ښپې پرې وينځلې شي هغه اوبه څښل د آخرت د خلاصي سبب دې]

**لوستونکو اوګورئ!** چه دا جمله د الله د نوم د قَسم نه د شروع کيدو په وجه څومره قطعي کړې شوه، لِهٰذا ديوبنديانو وهابيانو ته د دِين، ايمان، نمونځ، او روژې رُخصت. بس د تهانوی ښپې دِ وينځی او هغه اوبه دِ څښي او د خپل مفتی د فتوې مطابق دِ خلاصې مومي.

د رشيد احمد ګنګوهي هم يو بل ارشاد اوګورئ فرمائي: ”سُن لو حق وہی ہے جو رشید احمد کی زبان سے نکلتا ہے اور بہ قَسم کہتا ہوں کہ میں کچھ نہیں ہوں، مگر اس زمانے میں ہدایت و نجات موقوف ہے میرے اتباع پر“ (تذکرۃ الرشید، ج۲، ص۱۷)

[**ترجمه**: واورئ! حق هغه دې څه چه د رشيد احمد د خُلې نه اوځي او په قَسم وائم چه زه هيڅ نه يم، خو په دې زمانه کښ هدايت او خلاصې زما په تابعدارئ باندې موقوف دې]

دا الفاظ څومره په قطعيت سره وئيلې شوي دي. که څوك دا اووائي چه ”حق هغه دې چه ګنګوهی وائي“ او ټول انبياء، صحابه، اولياء او علماءِ کاملِين نه بلکه د دُنيا ټول وهابيان ديوبنديان علماء هم چه څه وائي هغه حق نه دي، نو بيا دِ [ديوبنديان، وهابيان] د دې د پاره اخوا ديخوا خبرې نه جوړوي، او نه دِ د ګنګوهی د معصوم جوړولو کوشش کوي ګني ديوبنديانو وهابيانو ته به ډېل مشکلات جوړ شي، بلکه دا دِ تسليم کړې شي چه د ګنګوهي دا بيان سراسر دروغ دې. ځکه چه دروغ د واقعې خلاف خبرې ته وائي او د ګنګوهی دا الفاظ

بیشکه د واقعې خلاف دي. چه دا ثابت شوه چه ګنګوهي دروغ وائي، نو بیا پخپله اووائې چه د دروغژن په تابعدارئ باندې هدایت او خلاصې موقوف کیدل خو پریږده، آیا چرې کیدې هُم پرې شي؟

**محترمو لوستونکو**! دا خادمِ اهلِ سنَّت بیا عرض کوي چه د دیوبندی وهابی تبلیغی ډلې علماء او عوام، زمونږه د اهلِ سنَّت و جماعت په دې وجه دښمنان دي چه مونږه د دوئي د مشرانو د کتابونو په آئینه کښې دوئي ته د دوئي مخونه ښائیو. دوئي ته چه په آئینه کښې خپل مخونه داغدار ښکاری، نو د دوئي د پاره صرف دوه لارې دي. یا دِ د خپلو مخونو داغونه لرې کړي او یا دِ آئینه ماته کړي. آئینه د دوئي د مشرانو کتابونه دي، او د مخونو داغونه د دوئي هُغه بې ځایه اعتراضونه دي، کوم چه دوئي په مونږه کوي. خو مشهور متل دې چه **رسئ اوسوزیده خو تاؤ ئې ختم نه شو** (متل خو د سپي د لکئ والا هم شته خو د الله تَعَالٰی په فضل د دې ګنهګار ژبه او قلم نامناسبه بیان نه خوښوي) د دې خلقو هم دا حال دې چه نه خو د خپلو مشرانو د خُرافاتو او بکواسونو نه ډك كتابونه دریاب کښې اچوي او نه په مونږ اهل سنت باندې د بې ځایه اعتراضونو سلسله بندوي. که هر څه اوشي خو دوئي خپله ناجائِزه خبره او ضِد نه پریږدي. د الزامی جواب نه پس اوس د اعلٰی حضرت بریلوی رَحمَۃُاللہِ تعالٰی عَلَیْہ د الفاظو "*میرا دِین*" [یعني زما دِین]" د قرآن و حدیث په رنړا کښې تحقیقی جواب هم اوکورئ.

په قرآنِ حکیم کښې الله تَعَالٰی ارشاد فرمائي: " **اَلْیَوْمَ اَکْمَلْتُ لَکُمْ**

دِیۡنَکُمۡ...اَلَخۡ" (نن مونږه ستاسو د پاره ستاسو دین مکمل کړو). چه اللّٰه تَعَالٰی ېخپله فرمائي چه "ستاسو دین" نو که یو مسلمان دا اووائي چه "زما دِین" نو دا به کله هم غلطه نه وي.

د مسلم شریف او بُخاری شریف د حدیث مطابق په قبر کښې دوه فرښتې درې سوالونه کوي او د هغوئي دویم سوال دا وي "مَادِیۡنُكَ" (ستا دین څه دې؟) د دې جواب مومِن دا ورکوي "دِیۡنِیَ الۡاِسۡلَامُ" (زما دِین اسلام دې). دیوبندی وهابی تبلیغی علماء او عوام ته عرض دې چه کله په دوئی کښې کوم یو خپل قبر ته لاړ شي، نو مُنکَر نَکِیر ته دِ صفا صفا اووائي چه "زما یو دِین هُم نشته" که داسې نه شي کولې نو ټول دیوبندیان وهابیان تبلیغیان دِ دا اومنی چه په اعلٰی حضرت بریلوی رَحۡمَةُاللّٰهِتعالٰیعَلَیۡه باندې د دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو اعتراض، د دوئي د اعلٰی حضرت سره د بې بنیاده دُښمنئ نه سِوا هیڅ نه دې.

* د "جوہانس برگ سے بریلی" پارټ ۲ په صفحه۲۵ د کتابچې د مصنِف یو بل دروغ اوګورئ:

د امامِ اهلِ سنت اعلٰی حضرت مولانا شاه احمد رضاخان رَحۡمَةُاللّٰهِتعالٰیعَلَیۡه د وصایا شریف یوه حصّه نقل کولو نه پس د جوہانس برگ سے بریلی مُصَنِّف د خپلې دروغ وینا او د خپل باطِن د خباثت سَرِعام اظهار کوي او لیکي چه:

"It is interesting to note that Ahmad Raza Khan

does not say that these things be given to the poor and convey the reward of it to me. Nay, he says, send these things"

د دومره لیکلو نه پس د جوہانس برگ سے بریلی مصنف چه د خپل بد عادت مطابق کومه خرابه لهجه اختیار کړي ده او څه ئې لیکلي دي، د هغې نه قطعِ نظر د جوہانس برگ سے بریلی د مصنف په دروغو به هُم دا اووائم چه "لَعْنَةُ اللهِ عَلَى الْكَاذِبِيْن" د دې قرآنی جواب نه پس د لوستونکو د خبرداري د پاره عرض دې چه اعلیٰ حضرت بریلوی رَحمَۃُاللہِتعالیٰعَلَیۡہ خپلو عزیزانو ته په Last will (آخری وصیت) کښې فرمائیلي وو چه، که تاسو په آسانئ کولې شئ نو په ښه خیزونو باندې د ایصالِ ثواب د پاره فاتحه اولولئ او د فقیرانو مسکینانو د پاره ئې د یو څو ښو طعامونو ذِکر هم اوفرمائیلو. خو چه د ایصالِ ثواب د پاره ئې د فاتحه او د طعام هدایات ورلیکلو وخت کښې واضحه طور د مخکښې نه څه فرمائیلي وو، [په هغه باره کښې] د هغوئي خپل الفاظ اوګورئ:

"فاتحہ کے کھانے سے اغنیاء کو کچھ نہ دیا جائے' صرف فقراء کو دیں اور وہ بھی اعزاز اور خاطر کے ساتھ 'نہ کہ جھڑک کر' غرض کوئی بات خلاف سُنّت نہ ہو۔"

**ترجمه:** د فاتحې د طعام نه مالدارانو ته هیڅ مه ورکوئ، صرف فقیرانو ته ئې ورکړئ او هغه هم په ډیر ادب او عزت سره، په رټلو نه، غرض دا چه یوه خبره هم د سُنَّت خلاف نه وي.

د دې الفاظو نه فوراً پس د اعلیٰ حضرت بریلوی رَحمَۃُاللہِتعالیٰعَلَیۡہ هغه

عبارت دي، چه د هغې عکس د پارټ ۲ په صفحه ۲۷ کښې د جوہانس برگ سے بریلی مصنف شائع کړې دې، خو د دې هدایت الفاظ، د جوہانس برگ سے بریلی مصنف، د دې عکس نه ویستلي دي چه "فاتحہ کا کھانا اغنیاء کو نہیں، صرف فقراء کو دیا جائے۔" [د فاتحې طعام دِ مالدارانو ته نه، صرف فقیرانو ته ورکړې شي]

محترم لوستونکي دِ پخپله اندازه اولګوی چه د جوہانس برگ سے بریلی مصنف دځومره خیانت او دروغو نه کار اخستې دې. د دې باوجود هم دیوبندی وهابي تبلیغی علماء ځان ته علمائے حق وائي، دوئي له شرم کول پکار دي. آیا د دې دیوبندیانو وهابیانو د داسې حرکتونو او د هغوئي د ګنده عقیدو د احوال معلومیدو نه پس، د دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د پاره دا تصور هم کیدې شي چه د دې دروغژنو او په دین پورې ټوقو کولو والؤ، د حق او پاکئ سره څه تعلق شته دې؟ هیڅ کله نه.

پخپله د دیوبندیانو وهابیانو غټ مفتی محمد شفیع صاحب فرمائي: "د چا کلام په غلط انداز کښې پیش کول او د هغه د مقصد خلاف په هغه باندې غلط الزام لګول ښکاره بهتان دې، او داسې کولو په حرام کیدو کښې چا ته د هیڅ شك ګنجائش نشته."

(سُنّت وبِدعت، ص۱۰، مطبوعه دارالاشاعت، کراچی)

**محترمو لوستونکو!** آیا حرام کار کوونکي "اهل حق" کیدې شي؟

ستاسو جواب به یقیناً دا وي، چه داسې خلق هیڅ کله اهلِ حق نه شي کیدې. دا دیوبندیان وهابیان علماء هیڅ کله علمائے حق نه دي، بلکه د خپلو ګنده عقائدو او بدو حرکتونو په وجه، دا بیشکه علمائے سُوء [یعني بدعقیده او بدکِرداره علماء] دي.

❋ د تهانوی صاحب Last will [یعني آخري وصیت] هم په چاپ شوي کتاب کښ موجود دې، وائي: "زما نه پس هم زما د تَعَلُّق لحاظ غالب ساتئ. وصیت کووم چه که شل ګسان په شریکه یوه یوه روپۍ د میاشتې د هغې (یعني د تهانوی د کونډې) د پاره په خپله ذِمه واخلي نو اُمید دې چه هغې (یعني د تهانوی کونډې) ته به تکلیف نه وي."

(تنبیهات وصیت، ص۲. اشراف السوانح، ج۳، ص۱۱۸)

اعلٰی حضرت بریلوی رَحمَةُاللهِتعالٰیعلَیه خو د خپل کور کسانو ته دا وصیت کوي چه "د فقیرانو خیال ساتئ او د رسولُ الله صَلَّی اللهُ تعَالٰی علَیهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم د سُنَّت خلاف هیڅ مه کوئ"، او د دیوبندیانو وهابیانو د تهانوی په الله تعالٰی باندې یقین نشته، ځکه هغه غیرالله ته هم صرف د خپل کور والؤ د پاره تاکید کوي، هغوئي د فقیرانو هیڅ پرواه نه لري. تهانوی سره په ژوند کښ هم د خپل ځان غم وو، چنانچه د تهانوی د خپلې خُلې خبره واورئ چه هغه ټول عُمر څه کول، فرمائي: "زما کره چه میلمه راشي نو زه د میلمه سره ساده او عام طعام خورم، او چه میلمه نه وي نو د معمول نه علاوه څه داسې خوراك هم کووم چه د هغې په ذریعه

طاقت حاصلیږي مثلاً پـۍ یا حلوه وغیره." (الاضافات یومیه، ج۷، ص ۱۷)

د میلمنو سره د تهانوي د معمول نه دا معلومیږي چه جناب تهانوی به خپلو میلمنو ته د خپلې کم خوراکۍ او د خپلې نمائشي سادګۍ دوکه ورکوله، دا لا څه بلکه تهانوی صاحب به د خلقو ورکړې شوو تحفو سره څه سلوك کولو؟ هغه هم واورئ، وائي: "ځیني ځیزونه خو داسې وي چه فوراً په کار راشي خو ځیني ځیزونه داسې راشي چه سوچ ورته کووم چه آخر څه پرې اوکړم، یا خو ئې چا له ورکړم او یا چه رابانديې بُخل [یعني شومتیا] غالبه شي نو سوچ راشي چه هسې ئې ولې ورکړم! خرڅومه ئې ولې نه. چنانچه خرڅ ئې کړم او روپۍ ترې کره کړم."

(اشرف المعمولات، ص ۲۳، النور بابت ماهِ شوال المُکرّم ۱۳۵۰هـ، مطبوعه اشرف المَطابع، تهانه بهون)

د جوہانس برگ سے بریلی مصنف ته به د بخِیل د پاره د نبـی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ ارشاد ښه یاد وي. هغه دِ غور اوکړی چه ځان "د سُنَّت تابعدار" ګڼړلو والا اشرفعلی تهانوی پخپله وائي چه "که بُخل رابانديې غالب شي" یعني بُخل د هغه عادت وو، خو چه کله به پرې بُخل ډیر زیات غالب شو نو د خلقو د ورکړې شوو تحفو کاروبار به ئې کولو.

نور واورئ! تهانوی پخپله وائي چه: "زما ټول عمر په مفت خورئ کښې تیر شوې دې. اوّل خو به مې د پلار ګټه خوړله، بس په مینځ کښې مې ډیرې لږې ورځې په تنخواه تیرې کړې دې، بیا د هغې نه پس هُم هغه مُفت خورئ سلسله جاري ده یعني د ډیرې مودې نه

مې په نذرانو [يعني خيروخيرات] وخت تيريږي، نه څه کار کول غواړي، نه څه کټل غواړي." (الاضافات يوميه، ج۱ص ۳۵٤، مطبوعه ديوبند)

اعلٰی حضرت امام اهل سنت مولانا احمد رضا خان بریلوی رَحۡمَۃُ اللهِ تَعَالٰی عَلَیۡه خو په آخري وصيت کښې هُم په فقيرانو باندې په عزت او احترام د ښه طعامونو د خوړلو هدايات ليکي او د ديوبنديانو وهابيانو حکيمُ الامَّت د مفت خورئ او د خپلې خيټې ډکولو نه نه اوزګاريږي.

د ديوبنديانو د امام رشيد احمد ګنګوهی حالت هم واورئ: "يو صاحب حضرت ګنګوهی ته عرض اوکړو چه حضرت (تاسو) غاښونه کيږدئ. اوئې فرمائيل څه به اوکړم په غاښونو، بيا به پوټې جوول غواړي. اوس خو راباندې خلق د غاښونو نه کيدو په وجه رحم کوي او پستې پستې حلواګانې راباندې خوري." (الاضافات اليومية ج۲، ص۲۳)

لږ دا هم اوګورئ. د ديوبنديانو لوئ امام اسماعيل دهلوی بالاکوټي وائي: "میری دُعا تو مٹھائی کے بغیر چپکتی نہیں" [يعنی زما دُعا خو د مټائي نه بغير هډو قبليږي نه] (ارواح ثلاثة، ص۷۲)

(د دُعا د پاره د چپکنے [يعني د قبليدو د پاره د نښتلو] د لفظ استعمالول هم د ديوبنديانو "امام" کولې شي)

او اوګورئ: "حضرت (حسين احمد مدنی) به وئيل چه حاجی (بدرالدين) صاحب! تاسو مټايان ولې نه دي راوړي؟ نو ما به عرض اوکړو چه حضور زما سره روپئ نشته، نو حضرت (حسين احمد مدنی) به طالب

علمانو ته حکم ورکړو چه د ده (یعني د حاجی بدرالدین) تلاشي واخلئ.
بیا به څه وو، ځومره طالب عِلمان به چه وو ټول به په ما (یعني حاجی بدرالدین) باندې راټول شو. او زما سره به چه څومره روپۍ وې د هغه ټولو روپو مټایان به ئې را اُوغوښتل او په حِصَّه به تقسیم کړل. کله کله خو به ئې زما نه په ټوقه کښې کوټ په زور واخستلو او د ځان سره به ئې کیښودو او وئیل به ئې چه هله به ئې بیرته درکووم چه د مټائي د پاره روپۍ راکړې. بیا به مې مجبوراً پیسې ورکړې......کله به چه حضرت په زیات طبیعت کښې وو نو په خپله وړوکي لور عِمرانه به ئې دا شعر وئیلو:

کہیں ہے روس کا بٹوا کہیں ہے چین کا بٹوا
ہے حضرت شیخ کی محفل میں بدرالدین کا بٹوا"

(الجمعیة، دھلی، شیخ الاسلام نمبر، ص ۱۸۵)

**د شعر ترجمه:** چرې د روس بټوه وي چرې د چین بټوه وي
د حضرت شیخ محفل کښې د بدرُالدِّین بټوه وي

دې حُسین احمد ټانډوی مدَنی ته دیوبندیان تبلیغیان "شیخ الاسلام" وائي. دا هغه حسین احمد مدَنی دې چه ده کله د قرآنی نظریاتو خلاف فتوې ورکړې نو **مشهور شاعرِ مشرِق علامه ډاکټر محمد اقبال** په خپل کلام کښې د حسین احمد غندنه اوکړه او ښکاره ئې اوفرمائیل چه د دیوبندیانو دا "شیخُ الاسلام"، د حُضُورِ اکرَم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمَ د

مرتبې او مقام نه بې خبره دې او د ابولهب په شان خبرې کوي.

**محترمو لوستونکو!** د هر عمل ردِّ عمل ضرور وي. دې ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو، د الله د خوږ رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ په شان کښې ګستاخۍ او بې ادبي کړي ده او کفر ته رسيدلي دي. نتيجه ښکاره ده چه د الله تعالیٰ د **محبوب** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ د ګستاخۍ په دُنيا کښې دوئي ته دا سزاورکړې شوه چه په دُنيا کښې رُسوا شو او د قيامته پورې به رُسوا کيږي او په آخرت کښې به ئې چه کوم حال وي هغه به اِنْ شَآءَ اللّٰه تَعَالٰی ټول مخلوق اُووِيني. کافِر وَلِيد بن مُغِيره چه کله د حُضُور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ په شان کښې ګستاخي اوکړه نو الله تَعَالٰی وَلِيد بن مُغِيره داسې رُسوا کړو چه د هغه لس عيبونه ئې په قرآن کښې بيان کړل. (تاسو ئې د قرآن کريم په سورۀ نٓ وَالْقَلَم، سيپاره ۲۹ کښې کتلې شئ) د دې نه معلومه شوه چه د ګُستاخانِ رسول غندنه او د هغوئي عيبونه بيانول د قرآن نه ثابت دي. په قرآن کښې اوګورئ. نمرود د خدائې دعوٰی کړي وه، فرعون د خدائې دعوٰی کړي وه، الله هغوئ ته مُهلت ورکړې وو، هغوئي حکومت کولو، کله چه هغوئي د الله د ګرانو بندګانو، نبيانو ګستاخي اوکړه، نو د خدائي دعوٰی کوونکې نمرود يو معمولي مخلوق ماشي په ذريعه رُسوا کړې شو او مړ شو، او فرعون سره د خپل ټول لښکر غرق شو. د ديوبنديانو د امام رشيد احمد ګنګوهي خاص

شاګرد حسين علی صاحب **بهچرانی1** ډير بې ادبه او ګستاخه وو، د هغه د تفسير "**بُلغَةُ الحَيران**" يو څو ناپاکه عبارتونه به تاسو زما په کتاب

---

1 د جوہانس برگ سے بریلی، په پارټ۲ ص ۱ باندې د ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو يوه بيوقوفي ټخپله د هغوئی د لاس ليك ده، ليکي:

"This is the first time that we have heard of this book"Bulgatul Hairaan"

**ترجمه**: دا وړومبنې ځل دې چه مونږه د دې کتاب "بُلغَة الحيران" په باره کښې واوريدل.

که په جنوبي افريقا کښې مقيم د ديوبندی ډلې تشهِير او دفاع کوونکي د خپلو علماؤ او د هغوئي د کتابونو علم نه لري چه هغه د خپل کوره بې خبره دې نو هغه دا حق نه لري چه په نورو اعتراضونه اوکړي. تماشا دا ده چه د بُلَغَةُ الحَيران کتاب نه د لاعلمئ ښکاره کولو باوجود د جوہانس برگ سے بریلی مصنف د بَلَغَةُ الحَيران عبارت درست ثابتول غواړي، که دا د هغه بيوقوفی نه ده نو نور څه دي؟

د محترمو لوستونکو د معلوماتو د پاره عرض دې چه مونږه اهلِ سنت وجماعت چه کله دې ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو ته د دوئي د مشرانو علماؤ کتابونه ښائيو، نو دوئي په خپل مينځ کښې يو بل ته ګوري، ځکه چه دوئي سره د خپل کور د بد حال نه د خبريدلو او د خپلو مشرانو د کتابونو لوستلو هيڅ فکر نشته، ګني دوئي به په مونږه اهلِ سنت و جماعت باندې د بې ځايه او بې بنياده اعتراضونو کولو جرأت نه کولې. د دې خادمِ اهلِ سنت ټولو ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو ته دا مخلصانه مشوره ده چه که کيدې شي نو د خپلو علماؤ او د هغوئي د کتابونو نه ځان خبر کړئ او په مونږه اعتراض کولو نه مخکښې دا تحقيق اوکړئ چه ستاسو د علماؤ ستاسو د دې اعتراض په باره کښې څه موقف دې؟ دغسې به تاسو د شرمندګئ او رسوائې نه کيدې شي چه بچ شئ، ګنی مونږه به ستاسو د هر اعتراض جواب ستاسو د مشرانو د کتابونو نه درکوو د دې د پاره چه د الله بندګان خبر شي چه ستاسو د ديوبنديت بُنياد صرف په دروغو قائم دې.

"**د دیوبند نه بریلی ته** (حقیقت)" کښې کتلي وي. د هغه حال داسې اوشو
چه د مرګ نه یو څو ورځې مخکښې د هغه کولمې څه داسې شوي وې
چه د هغه ډك بَول به خُلې له راتلل نو کله به ئې تُوکَل او کله به تیرول
او ښېې ئې څه داسې شوي وې چه واړه بول به ئې کول نو داره به ئې
خپل مخ ته کیدله او د حسین علي شاګرد غلام خان راولپنډي والا
(چا ته چه دیوبندیان وهابیان، شیخ القرآن غلام الله وائي) د خپل استاد نه
هم زیات بې ادبه او ګستاخه وو، دُبئ (متحده عرب امارات) کښې د
هغه د مرګ نه مخکښې د هغه ټوله ژبه د خلې نه بَهر راووتله، او په
هغې سخا تورې پولئ راښکاره شوې او خله ئې د سپي په شان شوه.

د پاکستان په اخبارونو کښې دا خبر په غټو سُرخیانو کښې شائع
شوې وو چه د ډاکټرانو دا هدایت په تابوت باندې لیکلې شوې وو
چه "د غلام خان مخ د کتلو قابل نه دې."

یو کال مخکښنئ خبره ده، وهابی مُلا حبیب الرحمٰن یزدانی په لاهور
(پاکستان) کښې د ورځې عامې جلسې ته په تقریر کښې اووئیل چه
"سنی بریلوی وائي چه داتا (ګنج بخش) ډیر څه کولې شي، که څه
کولې شي نو زما ښېې دِ ماتې کړي." چنانچه د الله مخلوق اولیده، چه
په هُم هغه ورځ د هغه ښېې ماتې شوې او هغه ته د حضرت داتا صاحب
رَحمَةُاللهِ تعالىٰ عَلَيه د ګستاخئ سزا ورکړې شوه.

**محترمو لوستونکو!** د دې ګستاخانو او د دوئي د ګستاخئ احوال ځکه بیانووم چه ټول خلق ترې عبرت حاصل کړي او په هیڅ شان هم د الله د نیازبینو بندګانو ګستاخي او بې ادبي اُونکړي او نه د ګستاخانو او بې ادبو حِمایت او ستائنه اوکړي، خو افسوس دې چه دا دیوبندیان تبلیغیان د اللّٰه تَعَالٰی د نیازبینو بندګانو د ګستاخانو او بې ادبو د حِمایت او ستائنې نه نه اُوزګاریږي، د دیوبندیانو وهابیانو دا عمل، بیشکه د الله تَعَالٰی د غضب او ناراضئ سبب دې، چنانچه د دیوبندیانو امام رشید احمد ګنګوهي صاحب فرمائي:

"په خُله د کفر او شِرك کلمات وئیل او هغه په دلیلونو ثابتول او د هغې اعتراضونه ختمول، پخپله د عقیدې دلیل دې او فرض کړه که عقیده ئې نه وي، بیا هم حرام او د خدائے تعالٰی د غضب سبب دې. مثلاً څوك تا ته خر، خنزیر اووائي یا درته کنزلي اوکړي، نو ښکاره خبره ده چه هغه کس عقیده نه لري چه ته خر، خنزیر ئې، یا داسې ئې څنګه چه ئې تا ته کنزلي کړي دي، صرف په خُله ئې وینا کړي ده، خو اووایه چه تا ته به د هغه په دې خبرو غصه درځي او که نه؟ ضرور به غصّه درځي. دغه شان د کفر او شرك خبرې اوګنړه، چه هغه ضرور د الله تعالٰی د غضب سبب وي، ځکه چه د حق تعالٰی ذات، د حیاناك نه حیاناك مسلمان نه هم زیات غیرت مند دې." (تذکرۃ الرشید، ج۱، ص۹٤)

علمائے دیوبند دِ د خپل امام په عبارت غور اوکړي. د دوئي د خپلو فتوو مطابق چه [د دوئي د مشرانو] کوم کلمات بیشکه کفر او شرك او حرام دي، دا دیوبندیان وهابیان هغه صرف په ژبه نه وائي بلکه د هغې تبلیغ او خورول کوي او د هغې د صحیح ثابتولو د پاره دلیلونه راوړي، د دوئي د خپل اِمام مطابق په داسې کولو د هغوئي خپله عقیده ثابته شوه او دا ټول د الله تعالیٰ د غضب او د ناراضئ سبب دي او د عقیده نه کیدو په صورت کښې هم دا کلمات وئیل حرام دي او ټول دیوبندیان وهابیان هُم دغه حرام کار کوي.

افسوس چه د دوئي خپل ځانونه، د دوئي خپل حیثیت د دوئي د خپل امام مطابق په دې حرام او د کفر او شرك په کار کښې اخته دي، خو نورو ته د رنړا کولو دعوٰی کوونکي دا دیوبندیان وهابیان تبلیغیان علماء دا هوش نه لري، چه دوئي پخپله څومره په تیَرو کښې دي. الله تَعَالیٰ دِ د دوئي د شر نه مونږه اوساتي.

د جوہانس برگ سے بریلی، په پارټ۲، ص ۱۰ کښې اعلیٰ حضرت رَحمَةُ اللهِ تعالیٰ عَلَیه باندې یو بل اعتراض، د دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د ناپوهتیا ثبوت پیش کوي. اعلیٰ حضرت بریلوی رَحمَةُ اللهِ تعالیٰ عَلَیه په خپل منظوم کلام کښې د حضرتِ محبُوبِ سُبحانی، شیخ سید عبدالقادر جیلانی سرکارِ غوثِ اعظم رَحمَةُ اللهِ تعالیٰ عَلَیه منقبت د شاعرئ په یو څو قِسمونو کښې وئیلې دې. اعلیٰ حضرت بریلوی رَحمَةُ اللهِ تعالیٰ عَلَیه د حضورِ

غوثِ اعظم رَحمَةُاللهِ تعالیٰ عَلَیه د نوم د حُروفِ تَهَجّي مطابق او د هغې نه علاوه ډېرې رباعیانې وئیلې دي. په یوه رباعۍ کښې اعلیٰ حضرت بریلوی رَحمَةُاللهِ تعالیٰ عَلَیه د حضرت غوثِ اعظم رَحمَةُاللهِ تعالیٰ عَلَیه د نوم "عبدالقادر" د حروفو لطائفو بیان په حُسنِ عقیدت او محبت سره کړې دې. (د حضرت غوثِ اعظم رَحمَةُاللهِ تعالیٰ عَلَیه د نوم، عبدالقادر څلورم او ووم حرف "الف" دې او آخری حرف "ر" دې او دا حرف د دې نوم د انجام نه تعبیر کړې دې.) د دې رباعۍ صرف د دوو مصرعو عکس، د جوہانس برگ سے بریلی مُصَنِّف شائع کړې دې. که هغه دیانتدار وې نو د پوره رباعۍ عکس به ئې شائع کړې وې، خو هغه ته معلوم وو چه د پوره رباعۍ عکس شائع کولو په صورت کښې به اهلِ علم پوهه شي چه د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف اعتراض صرف د هغه د خپلې ناپوهتیا او د اعلیٰ حضرت سره د بې بنیاده دُښمنۍ په وجه دې. دلته لوستونکو ته دا وئیل ضروري ګڼړم چه د دیوبند د لویو لویو عُلَماؤُ دا بیان دې چه د اعلیٰ حضرت د منظوم کلام یوه یوه کرښه د عشقِ رسول ﷺ نه ډکه ده. د دیوبند غټو عالمَانو د اعلیٰ حضرت بریلوی په کلام کښې څه نقص اُونه موندو، هغوئي هیڅ کله څه اعتراض نه دې کړې، د "جوہانس برگ سے بریلی" کتابچې مصنف، شاید چه د ټولو علمائے دیوبند نه غټ عالم دې او شاید د دې خپل زیات علم او

پوهې په وجه خپل مشران رُسوا کوي.1

**محترمو لوستونکو!** د اعلیٰ حضرت بریلوی رَحۡمَةُاللهِتَعَالٰیعَلَیۡه هغه پوره (فارسی) رباعي اوکورۍ، د کومې چه د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف صرف دوه مصرعې نقل کړي دي او په اعلیٰ حضرت بریلوی رَحۡمَةُاللهِتَعَالٰی عَلَیۡه پورې ئې سخت بهتان تړلې دې:

"بر وحدت او رابع عبدالقادر　　یک شاہد و دو سابع عبدالقادر

انجام وے آغاز رسالت باشند　　اینک گو ہم تابع عبدالقادر"

د دې رباعۍ ترجَمه دا ده چه د الله تعالیٰ په وَحدت باندې (د حضرت غوث اعظم رَحۡمَةُاللهِتعالیٰعَلَیۡه د نوم) عبدالقادر څلورم حرف "**الف**" ګواه دې او د دې نوم عبدالقادر ووم حرف "**الف**" دويم ګواه دې. د عبدالقادر د نوم آخري حَرف "ر" دې، چه هُم دا حَرف "ر" د لفظ "**رسالت**" وړومبې حرف دې، نو دا اووائیه چه د دې نوم عبدالقادر صِفَت دا دي چه دا نکات د مبارك نوم "عبدالقادر" تابِع دي، او د

---

1 د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف ناسته ولاړه تپوله "انګریزي" ده، څکه د عربۍ او فارسۍ د علومو نه بې خبره دې، هغه دِ د خپل پیشوا اشرفعلی تهانوی د "انګریزۍ" په باره کښې ارشاد اوکوري: (تهانوی صاحب) وئیلي دي "چه انګریزی څه علم نه دې، د دې د دِین سره څه تعلق دې، بلکه د دې د لوستو سره بنده اکثر د دین نه بے تعلقه شي." (کمالاتِ اشرفیه، ص۷۰)
چنانچه، د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف د خپل پیشوا د ارشاد مطابق د دِین نه بے تعلقه ثابیتږی او په خپلو کتابچو کښې ئې د هغې ثبوت هم ورکړې دې.

دې مبارك او خوږ نوم نه اخستې شوي دي.

داهم حقيقت دې چه اعلیٰ حضرت بريلوي رَحمۃُاللہِتعالیٰعَلَیْہ د دې رباعۍ په آخري دوو مصرعو کښې دا فرمائي چه حضرت غوث اعظم شيخ عبدالقادر جيلاني رَحمۃُاللہِتعالیٰعَلَیْہ د الله د اولياؤ سردار دې، چرته چه د غوثِ اعظم رَحمۃُاللہِتعالیٰعَلَیْہ د مقامِ وِلايت انتِها ده، د هغه ځائ نه د الله تعالیٰ د انبياؤ (علیھمُ السلام) مقامِ رسالت شروع کيږي. د "جوہانس برگ سے بریلی" بد ديانته مصنف او د ديوبنديانو د ډلې بد باطنه مبلغ د خپل جهالت او بيوقوفۍ په بنياد د دې رباعۍ د آخرو دوو مصرعو دا ترجمه کړې ده چه "د شيخ عبدالقادر نه پس به بيا رسالت شروع کيږي او هغه نوې رسول به هم د شيخ عبدالقادر تابع وي." د دې اعتراض په جواب کښې د عربۍ مشهوره مقوله بيا بيانووم چه "چا ته فِقه نه ورځي هغه د فِقه د کتاب مصنف جوړ شو." دا د ديوبنديانو وهابيانو د ډلې د مُبلّغِينو بدقسمتي او د بدو اعمالو نتيجه ده چه هغوئي د امام اهلِ سُنت اعلیٰ حضرت بريلوی رَحمۃُاللہِتعالیٰعَلَیْہ په کلام د پوهيدلو قابليت او طاقت نه لري او د خپل جهالت باوجود په اعلیٰ حضرت فاضل بريلوی رَحمۃُاللہِتعالیٰعَلَیْہ باندې اعتراضونه کوي او بُهتان لګوي او دغه شان پخپله خپل ځان رسوا کوي. دراصل د دې رباعۍ د وروستي شعر (د دوو مصرعو) په مطلب دا تش د نوم علماء ديوبنديان وهابيان نه پوهيږي، ځکه دوئي د دويم شعر د خپل طرف نه غلط مطلب او مفهوم جوړوي او

د عقیدهٔ ختمِ نبوَّت په رښتیني مُحافِظ اعلیٰ حضرت بریلوی رَحْمَةُاللهِ تَعَالٰی عَلَيْه باندې تهمت لګوي او د ځان د پاره عذاب جمع کوي.

د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف د اعلیٰ حضرت بریلوی رَحْمَةُاللهِ تَعَالٰی عَلَيْه په باره کښې لیکلي دي چه ”ولې چه اعلیٰ حضرت بریلوی ته ”قادری“ وائي. ځکه هغه د شیخ عبدالقادر تابع دې نو دغسې اعلیٰ حضرت خپل ځان ته ”نبـی“ وائي.“ دا بیشکه په اعلیٰ حضرت بریلوی رَحْمَةُاللهِ تَعَالٰی عَلَيْه باندې بُهتان دې، د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف او د هغه ملګري به د دې بهتان لګولو سزا اِنْ شَآءَالله ضرور مومي.

په اعلیٰ حضرت مولانا شاه احمد رضا خان بریلوی رَحْمَةُاللهِ تَعَالٰی عَلَيْه باندې سخت بهتان لګوونکي دیوبندیان وهابیان تبلیغیان دِ په غړیدلو سترګو د اعلیٰ حضرت بریلوی د ختمِ نبوت په باره کښې عقیده او فتوٰی اوګوری، کومه چه اعلیٰ حضرت په خپل کتاب ”جَزَی اللهُ عَدُوَّهٗ بِاِبَآئِهٖ خَتْمَ النُّبُوَّةِ“ کښې لیکلي ده.

هغوئي فرمائي: ”الله تعالیٰ رښتینې دې او د هغه کلام رښتینې دې. په مسلمان باندې چه څنګه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ منل، او الله تَعَالٰی یو او بې نیازه، لا شریك له، ګڼړل فرضِ اوّل او د اِیمان بنیاد دې، هُم دغسې محمد رَسُولُ الله صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ خاتم النبِیّین منل [د اِیمان بنیاد دې]، د هغوئي په زمانه کښې یا د هغوئي نه پس د بل نوي نبـی بعثت [یعني راتلل] یقیناً قطعاً محال او باطِل ګڼړل فرضِ اجل او د یقین [یعني ایمان]

حصّه ده، وَلٰكِن رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ النَّبِيّٖن د قرآن نَصِ قطعي دي. د دې منكر، منكر نه بلكه شك كوونكې، شك نه بلكه ادنٰى كمزورې احتمال بلكه لږ شان خلاف وهم لرونكې قطعاً اجماعاً ملعُون [يعني لعنتي] او د هميشه د پاره دوزخي دې، داسې نه ده چه صرف هغه كافِر دې بلكه څوك چه د هغه د عقيدهٔ ملعونه نه خبر وي او هغه كافر نه ګڼړي نو هغه هم كافر دې، څوك چه د هغه په كافِر كيدو كښې شك او تَرَدُّد لري، هغه هم كافِر دې......"

(ص٦، مطبوعه مكتبه نبويه، لاهور)

اعلٰى حضرت بريلوى رَحمَةُاللهِتعالىٰعَلَيه پخپله په خپل قلم باندې د "ختمِ نبوت" په موضوع باندې پوره كتاب بلكه د ډيرو كتابونو او ښكاره فتوو باوجود، د "جوہانس برگ سے بریلی" د مصنف په اعلٰى حضرت بريلوى رَحمَةُ اللهِ تعالىٰ عَلَيه باندې بهتان لګول، بيشكه د ديوبنديانو وهابيانو بد باطنه كيدو او د كذّاب [يعني ډير غټ دروغژن] كيدو ښكاره دليل دې. دلته به د خپلو لوستونكو د معلوماتو د پاره دا ضرور عرض كووم چه كه د نبوت دروازه برسيره ليدل غواړئ نو "تحذيرُ الناس" اولولئ. چنانچه د ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو ډلې لوئ عالِم محمد قاسم نانوتوى د الله خوږ نبى حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ آخِرى نبى نه تسليموي. د نانوتوى په كتاب "تحذيرُ الناس" كښې ليكلي شوي دي چه د "خَاتَمُ النَّبِيّٖن" معنٰى "آخِرى نبى" ګڼړل

د عوامو خیال دې، د پوهه خلقو په نِزد دا معنٰی صحیح نه ده[1].

نانوتوي لیکي چه ”که د حضور ﷺ نه پس بل یو نبـی پیدا شي نو د حضور ﷺ په آخري نبـي کیدو کښې به هیڅ فرق نه راځي.“ د نانوتوي د تحریر نه دا واضحه طور ظاهرېږي چه د نانوتوي په نِزد د حضور ﷺ نه پس هم د نبوت دروازه برسیره ده، او د بل یو نبـي پیدا کیدل کیدې شي. افسوس چه دیوبندیانو وهابیانو ته خپل کفر نه ښکاري، فضول د نورو رښتیني مسلمانانو د کافر جوړولو کوشش کوي. د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف دِ د بُهتان لګولو والا خپل عادت په باره کښې د خپلې دیوبندئ ډلې د لوئ عالم اشرفعلی تهانوی ارشاد اوګوري. اضافاتِ یومیه، حصّه چهارم صفحه ۳۳۷ کښې تهانوی صاحب فرمائي: ”په خپل بدن کښې خو دِ چینجي شوي دي د هغې نه نه ئې خبر او د نورو په جامو باندې ناست مچان درته ښکاري، مَړه خپل ځان ته خو اوګوره چه په څه حال کښې ئې.“

د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف او د هغه ملګري دِ لږ په توَجُّه سره اوګوري، د هغوئي تهانوي صاحب فرمائي: ”باغ ته خلق ځي څوك د

---

1 دیوبندي وهابي تبلیغي دِ د خپل تهانوی صاحب دا ګواهي اوګوري، هغه وائي: ” کله چه مولانا (نانوتوی) تحذیرالناس اولیکلو، هیڅ چا هُم په ټول هندوستان کښې د مولانا (نانوتوی) سره موافقت نه دې کړې، سِوا د مولانا عبدالحئ صاحب نه، مولانا صاحب زمونږ د مشرانو سره ډیر عقیدت او محبت لرلو.“ (اضافات یومیه. ج٤، ص٥٨)

سیل د پاره، څوك د ګلونو بوئي کولو د پاره، او څوك د میوو خوړلو د پاره، خو خنزیر چه کله لاړ شي نو ګندګي لټوي چه چرې به ډك بول هُم وي او که نه؟ هُم دا مثال د عیب لټوونکي سړي دې چه که په چا کښې هر څومره صِفتونه وي، خو د هغه نظر صرف عیبونه لټوي."
(اضافاتِ یومیه، حصّه٤، ص ٣٣٧)

په اعلیٰ حضرت بریلوی رَحۡمَۃُاللّٰہِتعالٰی عَلَیۡہ باندې سخت بهتان لګوونکي دیوبندیان وهابیان تبلیغیان دِ د خپل تهانوي د ارشاد مطابق په آئینه کښې خپل ځان ته اوګوري او که کیدې شي نو د خپل ځان د اصلاح کوشش دِ اوکړي.

دا خادمِ اَهلِ سُنَّت خپلو لوستونکو ته د دې دیوبندیانو وهابیانو اصل حقیقت ښائي او هُم د دې دیوبندیانو وهابیانو د تحریرونو نه ئې ښائي. نن صبا د دې دیوبندي وهابي ډلې دا مُبَلِّغِین د پیسو ګټلو د پاره خپل ځانونه د ختمِ نُبُوَّت محافظان ثابتول غواړي او خپل ځانونه د قادیانانو خلاف د مجاهد ثابتولو کوشش کوي. د دیوبندیانو وهابیانو مشر نانوتوي د "خَاتَمُ النَّبِيِّيْن" معنیٰ آخري نبـي نه مني او د حضور اکرم ﷺ نه پس د یو نبـي پیدا کیدل ممکن مني او د خپلې دې کفریه عقیدې په وجه د ایمان نه خلاص شوې دې. موجوده دیوبندي وهابي علماء ټولو قادیانانو ته کافر او مرتد وائي، خو خپل نانوتوي د قادیانانو په شان عقیده لرلو باوجود مومِن بلکه د اِیمان د ټیکدار

ثابتولو کوشش کوي. کیدې شي چه د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف هم قادیانانو ته کافر وائي، خو په فتاوٰی دارالعلوم دیوبند، حصّہ اوّل، ص۷، ۸ کښې درج د دې فتوې ټول الفاظ دِ په تَوَجُّه سره ضرور اوګوري او مونږ ته دِ اووائی چه د دې فتوې مطابق د ټولو دیوبندیانو وهابیانو په باره کښې څه رائے ساتل پکار دي.

"**سوال**: د مرزا غلام احمد قادیاني د مسیحیت او د مهدیت د دعوې نه د خبریدو باوجود هُم که څوك مرزا [غلام احمد] مسلمان ګڼړي نو آیا هغه کس ته مسلمان وئیلې شي؟"

"**جواب**: (د دارالعلوم دیوبند فتوٰی) د مرزا قادیاني باطل عقائد د دې حده پورې رسیدلي دي چه د هغې نه څوك خبر وي هغه مرزا ته مسلمان نه شي وئیلې، البته چا ته چه د هغه د باطلو عقائدو معلومات نه وي، یا تاویل اوکړي هغه که ورته کافر اُو نه وائي نو ممکنه ده، بهرحال د هغه د باطلو عقائدو د علم نه پس مرزا مذکور ته د هغه کافر وئیل ضروري دي، هغه ته او د هغه تابعداري کوونکي ته، د چا عقیده چه د هغه په شان وي، هغه ته دِ مسلمان نه وائي، هغه مسلمان نه وو، څنګه چه د هغه د کتابونو نه ظاهره ده. باقي دا چه کوم کس ورته د څه شك او تاویل په سبب کافِر نه وائي، هغه ته هم کافر وئیل نه دي پکار، ځکه چه د تاویل په موقع کښې احتیاط په کافر نه وئیلو کښې دې.

فقط بنده عزیزالرحمٰن، مفتی دارالعلوم دیوبند.“

(واضحه دِ وي چه په دې فتوٰی کښې د دارالعلوم دیوبند مفتی دا تسلیم کړه چه د چا مسلمان نه کیدل د هغه د لیکونو نه ظاهریږي)

جناب عبدالمَاجد دریابادي په خپل خط کښې جناب اشرفعلی تهانوي ته لیکي چه: ”زما زړه خو د قادیانانو د طرف نه هم همیشه د تاویل په لټون کښې دې.“ (حکیمُ الامت ص ۲۵۹)

اشرفعلی تهانوی فرمائي چه:”چا ته کافر وئیلو کښې ډیر احتیاط پکار دې، که څوك په حقیقت کښې کافر وي او مونږه (هغه ته کافر) اُونه وئیلو، نو څه باك دې.“1

نور فرمائي: ”پس که (کفر کوونکې) واقعي کافر وي او مونږه (هغه ته کافر) نه وائیو نو آیا زمونږ نه به ګنې د قیامت په ورځ تپوس کیږي؟ او که (کافر ته) مونږه کافر اووائیو نو د څو رکعاتو ثواب په حاصل شي؟“ (کمالاتِ اشرفیه، ص۳٤۷، ۳٤۸)

---

1 د لوستونکو د معلوماتو د پاره عرض دې چه د کفر او اسلام په مینځ کښې فرق کول د ضروریاتِ دِین نه دي. یو کافر ته که څوك ټول عمر کافر نه وائي، خو چه کله د هغه کافر کفر ښکاره شي نو د هغه د کفر په بنیاد هغه کافر ګڼړل او هغه ته کافر وئیل ضروري دي. ګنې دا شرعی اُصول دې چه کفر ته کفر نه وئیل پخپله کفر دې. چنانچه د دیوبندیانو پخپله هم دا فتوٰی ده چه:”څوك کافر ته کافر اُونه وائي هغه پخپله (هم) کافر دې.“ پخپله تهانوی وائي چه: ”د لاهوری (قادیانانو یوه ډله) خو مرزا (قادیاني) ته نبی نه وائي خو د هغه کفریه عقائدو ته کفر نه وائي او کفر کفر نه ګڼړل دا هم کفر دې.“ (کمالات اشرفیه، ص۱۲۳)

دریمه فتوٰی هم اوګورئ: "اہانت وگستاخی کردن درجناب انبیاء علیهم السلام کفر است..... واگربہ تاویلے وتوجیہے گوید کافر نہ شود....." (د انبیاء علیهم السلام په شان کښې توهین او ګستاخي کول کفر دې او که د توهین او ګستاخۍ الفاظ په تاویل او توجیه سره اووائي نو کافر نه دې.)

(امداد الفتاوٰی ج٤، ص١٢٦، مطبوعه مطبع مجتبائی، دهلی، ١٣٤٦ھ)

د دارالعلوم دیوبند باني محمد قاسم نانوتوي د خاتمُ النَّبِيّين معنٰی "آخري نبـی" نه مني او د حضورِ اکرم ﷺ نه پس د بل نبـی پیدا کیدل ممکن مني، او د دې دارالعلوم دیوبند مفتیان صاحبانو دا فتوٰی ورکړي ده چه کافر ته دِ کافر اُونه وئیل شي، د کفر د خبرې تاویل چه اوکړې شي نو کفر نه دې، او کفر کوونکي ته کافر نه وئیل بهتر دي او کافر ته که کافر اُونه وئیل شي نو هیڅ باك نشته وغیره. د دې تحریرونو په باره کښې دا خادم اهل سنت پخپله د څه جواب لیکلو په ځائ پخپله د علمائے دیوبند ارشادات نقل کوي، اوګورئ.

جناب رشید احمد ګنګوهي فرمائي: "د شریعت حکم دې چه کافر ته کافر اووایه، څکه بنده ته په تعمیل کولو کښې څه عذر دې؟ په چا کښې چه د کفر نښې اووینو، مونږ خو به هغه کافر ګڼړو او کافر به ورته وائیو." (تذکرة الرشید، ج٢، ص١٩٦)

ګنګوهي صاحب فرمائي چه: "کلمهٔ کفر قصداً وئیل، اګر که عقیده ئې په هغې نه وي، کفر دې..... چا چه د کفر په الفاظو کښې

تېوقه اوکړه، نو هغه به مرتد شي اګر که د هغې عقیده نه لري، په وجه د سپاکاوالي خو هغه هُم هغسې دې څنګه چه عادتي کفر وي.... که څوك د خپلې ژبې (او قلم) په ذریعه کفر اوکړي په خوشحالئ او (اګر که) د هغه زړه په اِیمان مطمئن وي نو هغه به کافِر شي او د الله په نِزد به مومِن پاتې نه وي.... په کفر راضي کیدل (هم) کفر دې....“ (تالیفات رشیدیه، ص ٦٥، ٦٦، گنگوهی. اِکفارُ المُلحدین، ص ٥٩، ٦٠ کاشمیری)

جناب اشرفعلی تهانوی فرمائي: ”په ضروریاتِ دِین کښې تاویل، د کفر نه بچ کوونکې نه دې.“ (اضافاتِ یومیه، ح ٧، ص ٦٠) هُم دا تهانوی فرمائي: ”که په چا کښې یوه خبره هم د کفر وي هغه بِالاِجماع کافر دې.“ (اضافاتِ یومیه، ح ٧، ص ٢٣٤) تهانوی صاحب فرمائي چه: ”د کفر د پاره یوه خبره هم پوره ده، آیا د کفر په یوه خبره کولو به ګڼې نه کافر کیږي؟“ (اضافاتِ یومیه، ح ٦، ص ٢٤)

**نور اوګورئ:** ”یو مولوی صاحب د قادیاني ډلې ذِکر کولو او حضرت (تهانوی) ته ئې عرض اوکړو چه ځیني مسلمانان هم قادیانان کافر نه ګڼړي، د هغې په باره کښې شرعی حکم څه دې؟ (تهانوی) اوفرمائیل چه د (قادیانانو د کافر) نه ګڼړلو دوه صورتونه دي، یوه خو دا چه هغه اووائي چه د هغوئي (یعني قادیانانو) هډو هُغه عقائد نه دي، د کومو په وجه چه هغوئي ته کافر وئیل کیږي، او یو(صورت)دا دې چه(د قادیانانو) دا عقائد دي، خو بیا هم هغوئي کافر نه دي، نو اوس داسې ګڼړلو والا

کس هم کافر دې، ځوك چه کفر ته کُفر نه وائي، که په احکامِ قضا [یعني د ظاهري شریعت مطابق] کافِر دې، باقی په احکامِ دیانت کښې [یعني د زړه حال ئې] خدائے ته معلوم دې، شاید چه د هغه په ذِهن کښې څه جُدا وجه وي او د هغې عِلم الله تعالٰی ته وي.'' (اضافاتِ یومیه، ح٦، ص٣١٨)

(د تهانوی په پاس ذِکر شوي تحریر کښې د ''احکامِ قضا'' او ''احکامِ دیانت'' فرق دِ دیوبندی ډلې مُبَلِّغ په غور سره اوګوري او د خپلو علماؤ د تحریرونو او فتوو په باره کښې دِ مونږ ته د دې جواب هُم راکړي.)

جناب مرتضٰی حسن دیوبندی، مصنف د اَشَدَّالعذاب، په ص١٤ کښې فرمائي: ''ځوك چه کافر ته کافر اُونه وائي هغه پخپله کافِر دې.'' نور فرمائي: ''کوم یو کافر ته د عقائدِ کفریه باوجود مسلمان وئیل هم کفر دې.'' (ص٩)

د دارالعلوم دیوبند فتاوٰی مرتب کوونکې، جناب مفتی محمد شفیع دیوبندي فرمائي: ''نبی کریم ﷺ خبر ورکړې دې چه هغوئي خاتمُ النَّبِیّین دې او د هغوئي نه پس بل نبي نشته او د الله تعالٰی د طرف نه ئې دا خبر ورکړې دې چه هغوئي ﷺ د انبیاؤ ختم کوونکې دې او په دې باندې د اُمَّت اجماع ده او دا کلام بالکل په خپله ظاهری معنٰی باندې محمول دې او د هغې کوم مفهوم چه د ښکاره الفاظو نه ظاهر دې هُم هغه بغیر د څه تاویل یا تخصیص نه مراد دې. پس د هغه خلقو په کفر کښې څه شك نشته، ځوك چه د دې انکار کوي او

دا قطعي او اجماعي عقيده ده." (ختم النبوة فی الآثار، ص۸)

هُم دا مفتي محمد شفيع صاحب د **هَدِيَةُ الْمَهدِيِّيْن** په ص۲۱ کښې فرمائي: (ترجَمه) "بيشکه د عربي لغت اتهله فيصله ده، چه په آيت قرآنی کښې د "خاتَمُ النَّبِيّين" معنیٰ صرف "آخري نبـی" دي د دې نه سِوا ئې بله څه معنیٰ نه ده. د اُمَّتِ مسلمه په دې معنیٰ باندې اجماع ده لهٰذا د "خاتَمُ النَّبِيّين" د متفقه معنیٰ، د اجماع نه خلاف [يعني بله څه معنیٰ] کولو والا کافِر دې، که هغه (د اجماع نه په خلاف معنیٰ باندې) ضِد کوي، نو قتل دِ کړې شي."

د مفتي محمد شفيع ديوبندي د فتوې نه پس د جناب محمد ادريس کاندهلوی فتوٰی هم اوکړئ. هغه په خپل کتاب **مِسكُ الخِتَام** کښې ليکي: "د حضور ﷺ د آخري نبـی کيدو انکار، د اصولِ دين انکار دې او ښکاره خبره ده چه د اُصولِ دين انکار ښکاره کفر دې."

(مسك الختام ص ۲۹)

**محترمو لوستونکو!** تاسو اوکتل چه ديوبندی وهابي تبليغي عالمَانو په اعلٰی حضرت بريلوی رَحمَةُ اللهِ تعالٰی عَلَيْه باندې لوئ بهتان اولګوو، چنانچه د الله تعالٰی قدرت دې چه په دُنيا کښې دې ديوبنديانو وهابيانو ته دا سزا ورکړې شوه چه دا خلق، پخپله د خپلو فتوو او په خپل مينځ کښې د يو بل په فتوو پخپله ټول کافر قرار شو. د لوستونکو د معلوماتو د پاره دا هم عرض کووم چه د ابوالکلام آزاد (ديوبندی) ورور د مِرزا

غلام احمد قادیانی ستائنه کړي ده، اوګورئ: ”حیاتِ طیّبه“ (مصنف عبدالقادر سابق سوداگر مل، ص۳٦۹) لوستونکي دِ د دې نه هُم خبر شي چه د مرزا غلام احمد قادیاني نکاح د هغه د مسلمان ګنړلو په وجه د وهابیانو **شیخُ الکُل** نذیر حسین محدث دهلوی تړلې وو. (حیاتِ طیّبه، ص۷٦، مصنف عبدالقادر، لاهور ۱۹۵۹ء)

د دیوبندیانو د مشهور مرشد جناب عبدالقادر رائے پوری د دجال وکذّاب کافر او مرتد مرزا غلام احمد قادیانی د دروغو په اِلـهام باندې د یقین کولو او د هغه نه د رُشد و هِدایت د دُعا د درخواست کولو او په قادیاني کافر مرتد امام پسې د نمانځه کولو تذکِره هم اوګورئ.

د دیوبندي وهابي تبلیغي ډلې موجوده سرپرست جناب ابوالحسن علي ندوی په خپل کتاب ”سوانح عبدالقادر رائے پوری“ (مطبوعه مکتبه اسلام، لکهنو) په صفحه۵۵ کښې لیکي: ”په هغه زمانه کښې د مرزا غلام احمد قادیانی د دعوو او د دعوت ډیره هَله ګُله وه، په پنجاب کښې خاص طور د مسلمانانو یوه آبادي هُم د دې شُهرت او تذکِرې نه خالي نه وه، د هغه کتابونه او رسالې په مسلمانانو لوستلې او په هغې باندې به بحثونه کیدل. د حضرت (رائے پوری) وطن (ڈهڈیاں) ته نِزدې بهیره ده، د هغه ځائ یو عالم کوم چه د حضرت (رائے پوری) د خاندانی بزرګانو شاګرد وو، حکیم نُورالدین (قادیانی)، د مرزا (قادیانی) په خاص عقیدتمندو او ملګرو کښې یو وو او د مرزا قادیاني د مدد او ملګرتیا د پاره

مستقل په قادیان کښې اوسیدو، د مرزا (قادیانی) د الله په بارګاه کښې د مقبول کیدو او دُعا د قبلیدو د هغه په عقیدتمندو او تعلق لرونکو خلقو کښې عام شهرت وو، حضرت (رائے پوری) د مرزا (قادیاني) په کتابونو کښې چرته لوستلي وو چه مرزا ته د خدائے د طرف نه اِلـهام شوې دې چه اُجِيْبُ كُلَّ دُعَائِكَ اِلَّا فِيْ شُرَكَائِكَ (زه به ستا ټولې دُعاګانې قبلووم سِوا د هغه دُعاګانو نه کومې چه ستا د شراکت دارو په باره کښې وي) حضرت (رائے پوری) مرزا (قادیانی) ته د دې اِلـهام او وعدې حواله ورکړه او د افضل ګړه نه ئې خط اولیکلو چه په هغې کښې لیکلي شوي وو چه زما ستاسو سره د هیڅ قِسمه شراکت نشته ځکه تاسو زما د هدایت او د شرح صدر د پاره دُعا اوکړئ، د هغه ځائ (قادیان) نه د مولوی عبدالکریم (قادیاني) د لاس لیکلې شوې جواب راغې چه ستا خط را اورسیدو ستا د پاره ډیرې دُعاګانې اوکړې شوې، ته کله کله د دې یادګیرنه کوه. حضرت (رائے پوری) فرمائي چه په هغه زمانه کښې به د یوې پیسې (پوسټ) کارډ وو، ما به (مرزا قادیاني ته) لږ لږ وخت پس یو کارډ د دُعا د درخواست استولو.“

د جناب شاه عبدالرحیم رائے پوری خاص مرید جناب عبدالقادر رائے پوری (چه د هغه اصل نوم غلام جیلانی وو) نور حالونه واورئ: ابوالحسن علی ندوی صاحب، په صفحه ٦٢ کښې لیکي چه رائے پوری

صاحب، د مرزا قادیانی سره د ملاقات د پاره قادیان ته لاړو او ووه اته ورځې ئې هلته تیري کړې. جناب رائے پوری د حکیم (نورالدین قادیانی) صاحب د مجلس په تذکِره کښې اوفرمائیل: ما به کتل چه لږ لږ ساعت پس هغه (حکیم قادیانی) په ډیر درد سره لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ ۖ اِنِّیْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِیْنَ ۚ داسې لوستلو چه زړه به ئې راښکلو، ما به سوچ کولو چه دا دومره نرم زړه لري او الله تعالیٰ ته مُتَوَجِّه دې نو دا څنګه ګمراه کیدې شي؟ خو د دې سره به مې په زړه کښې دا خیال پیدا کیدو چه ما د الله کوم بنده لیدلې دې او ترې راغلې یم، که الله تعالیٰ رحمٰن او رحیم دې او یقنیناً دې نو هغه به په ګمراهئ کښې نه پریږدي، په دې سفر کښې د (عبدالقادر رائے پوری) د مرزا (قادیانی) سره هم ملاقات شوې وو، (عبدالقادر رائے پوری) وائي چه ما به د هغوئي (یعني د قادیانیانو) په امام پسې هم نمونځ کولو او خپل نمونځ به مې جُدا هم کولو."

د جمعیة علماء ټرانس وال، جنوبي افریقا په اخراجاتو باندې د مصر نه شائع شوې کتاب "فَیضُ البارِی (شرح بُخاری)" دا الفاظ دِ هم د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف او ټول دیوبندیان وهابیان تبلیغیان ښه په غور واوري او د خپل مشهور "امام کبیر" جناب انور شاه کشمیری په باره کښې دِ شرعی حکم بیان کړي، هغوئي لیکي:

"زما په نِزد تحقیق دا دې چه په قرآن کښې تحریفِ لفظی هم شته

دي، دا تحریف یا خو خلقو قصداً کړې دې یا ئې د څه غلطۍ په وجه کړې دې.'' (فیض الباری، ج۳، ص۳۹۵، مطبوعه مصر) آیا په قرآن کښې د تحریف قائل دیوبندیان وهابیان ملایان هم د قادیانانو او رافضیانو نه په کفر کښې څه کم کیدې شي؟[1]

دا خادم اهل سنت د خپلو لوستونکو په خدمت کښې نور عبارتونه پیش کوي او بخپله د خپلې خبرې او رائے د حق محفوظ ساتلو سره خپلو لوستونکو ته عرض کوي چه هغوئي دِ د خپلې دیانت دارانه رائے نه ما ضرور خبر کړي. او الله تعالیٰ دِ ګواه جوړ کړي او د عدل او انصاف فیصله دِ بخپله اوکړي چه دیوبندی وهابی ډلې حقیقت څه دې؟

خپلو محترمو لوستونکو ته عرض کووم چه دا یو څو عبارتونه وړومبنې قسط اوګڼړئ، اِنْ شَآءَ الله په آئنده تحریر کښې به د قادیانانو او دیوبندیانو وهابیانو یو شان نور عبارتونه هُم پیش کړم. چه تاسو د دې دوه رُخ لرونکو اصلي رُخ په آسانۍ اوپیژنئ او د دې اِیمان د ډاکوانو نه ځان اوساتئ. الله تعالیٰ دِ مونږه د دوئي نه او د دوئي د شر نه په خپله پناه کښې اوساتي.

---

1 واضحه دِ وي چه د انورشاه کشمیری د دې کفریه جملې په وجه د هغه د کافر او مرتد کیدو فتوٰی ډیرو علمائے دیوبند ورکړي ده هغه فتوٰی زما سره محفوظ ده. (کوکب غفرله)

| د قادیانانو عبارتونه | د دیوبندیانو وهابیانو عبارتونه |
|---|---|
| (۱)"خدا یو دي او محمد ﷺ د هغه نبـی دي او هغه خاتم الانبیاء دي او د ټولو نه اوچت دي. اوس د هغوئي نه پس بل نبـی نشته خو هغه په کوم چه ظاهري طورد محمدیت څادر غوړولې شوې وي، ځکه چه خادم د خپل مخدوم نه جدا نه دي، او نه خاخ د خپلي څیلي نه جدا دي. پس څوك چه مکمل په مخدوم کښې فنا شي د خدائے نه د نبـی لقب مومي هغه د ختمِ نبوت خلل نه کرځي." (کشتی نوح مؤلف مرزا غلام احمد قادیانی، ص۳۳. مطبع ضیاء الاسلام قادیان. ۱۹۰۲ء) | (۱) "د عوامو په خیال کښې خو د رسولُ الله ﷺ خاتم کیدل په دې معنٰی دي چه د هغوئي زمانه د انبیاؤ د زمانې نه پس ده او هغوئي په ټولو کښې آخري نبـی دي، خو په پوهه لرونکـو خلقو باندې ښکاره ده چه په زمانه کښې د وړاندې والي یا وروسته والي بالذات څه فضیلت نشته بیا د ستائنې په مقام وَلٰكِن رَّسُوْلَ اللهِ وَ خَاتَمَ النَّبِيِّيْن وئیل په دې صورت کښې څنګه صحیح کیدې شي؟" |
| (۲) "داسې نبـی هم راتلې شي کوم چه د رسولِ کریم ﷺ د | (۲)"فرض کړئ که د هغوئي (ﷺ) په زمانه کښې بل چرته بل یو نبـی وي، بیا هم د هغوئی (ﷺ) خاتم کیدل هُم هغسې باقي پاتي کیږي. |

پاره ظل [يعني سورې] وي..... د

داسي قِسمه نبيانو په راتللو د

هغوئي په آخِرُ الانبياء کيدو

کښِ فرق نه راځی."

(دعوت الامير مصنف مرزا بشير الدين محمود، ص۲۵، مطبوعه قاديان)

(۳) "د خَاتَمُ النَّبِيِّيْنُ نه پس

زر نبيان پيدا کيدې شي."

(ایک غلطی کا ازاله، ص۳، مرزا قادياني)

"کومه خبره چه احمديان

[يعني قاديانان] کوي هغه صرف

دا ده چه د "خَاتَمُ النَّبِيِّيْنُ"

هغه معنٰى کومه چه دا وخت

په مسلمانانو کښِ رائج ده، نه

خو د قرآنِ کريم د پاسني آيت

نه ثابتيږي او نه د دې نه د

رسولِ کريم ﷺ عِزَّت او

شان هغه شان ظاهريږي، کوم

عِزَّت او شان ته چه په دې

(۳) "بلکه فرض کړئ که د نبی

ﷺ د زماني نه پس هم يو نبی پيدا

شي نو بيا به هم په خاتميت محمدي

ﷺ کښ څه فرق نه راځي."

(تحذير الناس، ص۳، ص۱۳، ص۲٤ مصنف محمد قاسم نانوتوی، مطبوعه کتب خانه قاسمی، ديوبند)

(٤) "لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَشْرَفُعَلِى رَسُوْلُ اللّٰهِ او

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا وَنَبِيِّنَا اَشْرَفُعَلِى

وئيلو کښ تسلي ده." (څه باك پکښ

نشته) (رساله الامداد. ص۳۵، بابت ماهِ صفر ۱۳۳٦ه از اشرفعلی تهانوی، از مطبع امداد المطابع، تهانه بهون)

(٥) "د هغه شهنشاه [يعني د الله تَعَالٰى] خو

دا شان دې چه که اوغواړي نو په يو

ساعت کښ به په يو حکمِ کُن په

کرورونو نبيان او وليان او پيريان او

د فرښتو او د جبريل او د محمد ﷺ

په شان پيدا کړي." (تقويةُ الايمان، ص۳۰، مصنف محمد اسماعيل دهلوی، مطبوعه فيض عام، دهلی)

(٦) "وجودِ مثل حضرت ﷺ ممكن است."

ترجمه: "د حضرت محمد ﷺ په شان بنده

آیت کښې اشاره شوې ده." (احمدیت کا پیغام، ص۹، مؤلف مرزا محمود احمد، ختمِ نبوّت کی حقیقت، ص۵، ۸، از شیخ مبارک. ناشر مهتمم نشرواشاعت، صدرانجمن احمدیه، ربوه)

(٤) "یوه ډیره غټه غلط فهمی د خَاتَمُ النَّبِیّیْنَ معنیٰ آخري نبی کیدو نه پیدا شوې ده..... د خَاتَمُ النَّبِیّیْنَ لفظ د حضرت نبی کریم ﷺ د ستائنې پاره راغلې دې او د دې نه مراد د هغوئې د مرتبې اوچتوالې دې یعنی د هغوئې (ﷺ) شان د ټولو نبیانو نه اوچت دې ګنې د ټولو په آخِر کښې کیدل څه د صِفَت خبره نه ده." (پیغامِ حق، پیدا کیدل ممکن دي." (یك روزی، ص۱۵۱، مصنف محمد اسماعیل دهلوی)

(۷) "د کوم یو مخلوق په نوم چه یو خاروې مشهور کړې شي چه دا غوا د سید احمد کبیر ده، یا دا چیلۍ د شیخ سدو ده، پس هغه حرام شي." (تقویة الایمان، ص٤٠، مصنف محمد اسماعیل دهلوی، مطبوعه فیض عام، دهلی)

(۸) "یا شیخ عبدَالقادر او یا علی وئیلو والا کافر دې." (تذکیرالاخوان، ص۲۹۷، از اسماعیل دهلوی)

(۹) "د یا شیخ عبدَالقادر وظیفه لوستل شِرك دې." (فتاوٰی امدادیه، ج٤، ص٥٥)

(۱۰) "د یا شیخ عبدَالقادر جِیلانی شیئًا لِلّٰهِ وغیره وظیفه لوستل حرام دي."[1] (فتاوٰی رشیدیه، ج۲، ص۱۳۹، مطبوعه

---

1 د هُم د دې کتاب په صفحه 117 کښې د دیوبندیانو وهابیانو او تبلیغیانو د دینی آقا او د تبلیغی جماعت د نظریاتی بنیاد اشرفعلی تهانوی د خپل استاذ په نوم لیکلې شوې دا الفاظ لوستونکو کتلې دي، "یَاسَیِّدِیْ لِلّٰه شیئًا انه (اے زما سرداره (ګنګوهی) په واسطه د الله څه خو راکړئ). اهل سنت و جماعت که دا الفاظ د

| ص۱۱، مطبوعه ضیاء الاسلام پریس، ربوه) (۵) ”دیوی [بُت] یا د شیخ سدو او داسې نورو نومونو | کتب خانه رحیمیه، دهلی. تألیفات رشیدیه، ص۷۷، مصنف رشید احمد گنگوهی، مطبوعه اداره اسلامیات، لاهور) (۱۱) ”د دې حضراتو (یعني د دیوبندیانو |
|---|---|

سیدنا غوث اعظم شیخ عبدالقادر جیلانی رحمۃ اللہ تعالیٰ علیه د پاره اووائي نو د دیوبندیانو د طرف نه د شرك د فتوو مشین گن چلول شروع شي او په تذكرةُ الرشید کښې دي چه د تهانوی صاحب د (گنگوهی د پاره) د دې الفاظو تحریر به د قیامت په ورځ د تهانوی د بخښنې قطعی سند ثابت شي. عجیبه خبره ده چه کوم الفاظ شرك او حرام قرار شي، هم هغه الفاظ د تهانوی د پاره د بخښنې ضمانت دې. د دې کتاب تذکرة الرشید ج۲ په صفحه۱۴۷ کښې دي چه یو پریشان حاله کس رشید احمد گنگوهی ته عرض اوکړو چه ”حضرت! د الله د پاره زما طرف ته توجه اوکړئ“ تذکره نگار لیکي چه گنگوهی صاحب د هغه کس طرف ته نظر اوکړو او [په نظر ئې] د هغه مشکل حل کړو. د دې الفاظو د غوث اعظم رحمۃ اللہ تعالیٰ علیه د پاره استعمال، د گنگوهی د فتوو مطابق شرك او حرام دې خو پخپله د گنگوهی د پاره د دې الفاظو استعمالول صحیح نه بلکه د مشکلاتو حل او د بخښنې سند ښودلې کیږي. ؎

ناطقہ سر بہ گریباں ہے اسے کیا کہیے

**ترجمه:** وئیونکي سر وهونکي دي، دې ته به څه اووائې؟

دا هم یاد ساتئ چه For God Sake [یعني د خدائ د پاره] الفاظ ټول دیوبندیان وهابیان تبلیغیان هم استعمالوي. د دنیا هر یو سوالگر هم د الله خاطر وراچوي او د خلقو نه سوال کوي، د دې ټولو د پاره څه فتوٰی ده؟ آیت قرآني وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْ تَسَآءَلُوْنَ [ترجمه: او د الله نه اوویریږئ د چا په نوم چه د یو بل نه سوال کوئ] ته هم خیال کوئ. د جواب په انتظار به یم.“

باندي چه کومي چیلۍ یا خیزونه ورکول کیږي هغه بالکل حرام دي." (تفسیرالقرآن، درس حکیم نورالدین مرزائی، ج۲، ص۶٦)

(٦) "یا شیخ عبدالقادر جیلانی شیئًا لِلّٰه وئیل، آیا د دې څه ثبوت چرې په قرآن کښې شته دې..... بیا دا وظیفه چا جوړه کړې ده." (پیغامِ صلح، لاهور بابت ١١ فروری ١٩٥٢ء)

(٧) "او یوه ورځ چه زه د ماسخُتن د نمانځه نه فارغ شوم، هغه وخت خو ما له نه څه خوب راتلو او نه بې هوشه ووم، بلکه ناجوړه ووم. ناڅاپه د مخامخ نه آواز راغې، د آواز سره دروازه اوډبیدله. لږ ساعت پس څه د مشرانو) خو په هره خبره کښې ګشش وي.... یو ځل ئې اووئیل چه مونږه یو ځل بیمار شو، مونږه د مرګ نه ډیر یریدلو مونږه په خوب کښې حضرت فاطمه رَضِیَ اللّٰہ تعالیٰ عَنْہا اولیدله، هغوئې زه خپلې سینې ته جوخت کړم، مونږه ښه شو." (الاضافات الیومیة، از اشرفعلی تهانوی ج٦، ص٣٧)

"یوه ورځ جناب ولایت مآب حضرت علی رَضِیَ اللّٰہ تعالیٰ عَنْہُ او جناب سَیِّدةُ النساء فاطمةُ الزهراء رَضِیَ اللّٰہ تعالیٰ عَنْہا سید احمد (رائے بریلوی) په خوب کښې اولیدل، پس جناب علی المُرتضٰی رَضِیَ اللّٰہ تعالیٰ عَنْہُ هغه (یعني رائے بریلوی) ته په خپل لاس مبارك غسل ورکړو او د هغه بدن ئې ښه اومږلو او وینځلو څنګه چه مور و پلار خپل ځامن لَمبوي او مږي، او جناب فاطمةُ الزهراء رَضِیَ اللّٰہ تعالیٰ عَنْہا ډیرې

وینم چه دروازه ډبوونکي زر زر زما خوا ته راروان دي، بیشکه دا پنج تن پاك وو. یعني علي د خپلو ځامنو سره او زه وینم چه فاطمه زهراء زما سر په خپل ورانه باندې کیښودو او زما طرف ته ئې په غور سره کتل شروع کړل." (آئینہ کمالاتِ اسلام، مرزا قادیانی، ص۲۷۳، تحفۂ گولڑویہ، ص ۲۱، مطبع ضیاء الاسلام، قادیان، از مرزا قادیانی)

(۸) "حضرت فاطمه په کشفی حالت کښې په خپل ورون باندې زما سر کیښودو او ما ته ئې اوښودل چه زه د هغې نه یم، چنانچه دا کشف په براهین احمدیه کښې موجود دې." (ایک غلطی کا ازالہ، ص۹، مصنف مرزا قادیان، مطبوعه مهتمم نشرواشاعت، قادیان، ۱۹۰۱ء)

(۹) "هر کس ترقی کولې شي

قیمتي جامې په خپل لاس هغه (بربنډ) ته واغوستلې...." (صراط مستقیم، ص ۱٦٤، مطبع مجتبائي، دهلی ۱۳۰۸ھ، (فارسی) صراط مستقیم، ص ۲۸۰، مترجم او مصنف اسماعیل دهلوی، ناشران ملك سراج الدین اینډ سنز پبلشرز، لاهور، نومبر ۱۹۵٦ء، مطبوعه نذیر پریس لاهور)

(۱۲) "انبیاء که د خپل اُمَّت نه ممتازه وي نو په علومو کښې ممتازه وي، پاتي شو عمل، نو په هغې کښې ځیني وخت په ظاهره اُمَّتي برابر شي بلکه مخکښې کیدې شي." (تحذیر الناس، ص۵، مطبع قاسمی، دیوبند)

(۱۳) "څنګه چه غیرِ نبی، د زمینداری په فن کښې د نبی نه اعلم [یعني زیات پوهه] کیدې شي، هُم دغه شان په فنِ سیاست کښې هم کیدې شي چه غیرِ نبي د نبی نه اعلم [یعني زیات پوهه] شي." (اضافاتِ یومیه، ج٦، ص۳٤۹، تهانوی)

(۱٤) "د جادوګرو د عادت خِلاف [یعني د عقل نه لرې] کمالات د نبیانو او ولیانو د عادت خِلاف کمالونو نه

او د غتې نه غټه درجه موندلې شي. تر دې چه د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ نه هم مخکښ کيدې شي." (الفضل، قاديان ١٧ جولائی ١٩٢٢ء)

(١٠) "زه به کله خطا کووم او صواب هم.... کله به زما اراده پوره کيږي او کله به نه پوره کيږي.... دا وحی اِلٰهی ده چه کله زما اراده خطا ځي او کله پوره کيږي.... خدا تعالیٰ خطا کولې شي." (حقيقة الوحی، از قاديانی، ص١٠٣، مطبع ميګزين قاديان، ١٩٠٧ء)

*********

قوي او اکمل واقع کيدې شي."
(فتاوٰی رشيديه، ج٣، ص٢٥، ګنګوهی)

(١٤) "حاصله دا چه د دروغو د ممکن کيدو نه مراد [دا دې چه] دروغ په قدرت باری تعالیٰ کښې داخل دي.... پس ثابته شوه چه دروغ د باری تَعَالٰی په قدرت کښې داخل دي. ولې به نه وي چه وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ."

(١٥) "خدا تعالیٰ دروغ وئيلې شي."
(فتاوٰی رشيديه، ج١، ص١٩، تاليفاتِ رشيديه، ص ٩٨، ٩٩، از رشيد احمد ګنګوهی، يك روزی، ص١٤٥، از اسماعيل دهلوی. براهين قاطعه، ص٢، از خليل احمد انبيټهوی)

(١٦) "افعالِ قبيحه ته د حق تعالیٰ د قدرتِ قديمه نه ښکه خارج وئيلې شو." (الجهد المقل، ج١، ص٤١، ٨٣، مصنف محمود الحسن ديوبندی)

(١٧) "دا مسلمه قاعده د اهلِ کلام ده کوم چه مقدورُالعبد دي هغه بمقدور الله دي." (تذکرة الخليل، ص١٣٥، مطبوعه مکتبه قاسميه، سيالکوټ)

د "جوہانس برگ سے بریلي" پارټ۲، په ص۷ او ۸ کښې په اعلیٰ حضرت بریلوی رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ باندې يو بل بې ځايه اعتراض کښې، ځان ته د عُلَماء وئيلو والا ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو جهالت اوګورئ. (د "جوہانس برگ سے بریلي" مصنف الفاظ چه څنګه ليکلي وو هُم هغسې نقل کووم.)

"A person Saw in a dream, that Rasoolullah Sallallahu Alayhi Wasallam was arriving. When he approached closer to Rasoolullah Sallallahu Alayhi Wasallam he asked: Huzoor where are you going? Rasoolullah Sallallahu Alayhi Wasallam replied: "A person has passed away therefor I am heading to participate in the janazah."

Apparently this draem was related to Ahmad Raza Khan. Ahmad Raza Khan said: "Alhamdulillah! I have led the Salaah of that blessed janazah."

**ترجمه**: يو کس خوب ليدلې وو چه رسول الله صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ را روان دې، کله چه هغوئې نِزدې شو نو هغه ترې تپوس اوکړو: حضور تاسو چرته روان ئې؟ رسولُ الله صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ جواب راکړو: "يو کس وفات شوې دې زه د هغه په جنازه کښې شرکت کول غواړم." په ظاهره دا خوب د احمد رضا خان متعلقه وو. احمد رضا خان فرمائيلي دي: "اَلْحَمْدُلِلّٰه د هغې جنازې امامت ما کړې وو."

د دې ليکلو نه پس د "جوہانس برگ سے بریلي" مصنف دا وائي چه يو استاد، پير يا شيخ چه په داسې موقع موجود وي، نو يقيناً هغوئې ته د امامت پيش کش کولې کيږي، خو احمد رضا خان په فخر سره وائي چه اَلْحَمْدُلِلّٰه د هغه جنازې امامت ما کړې وو. د دې ليکلو نه پس د

”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف وائي چه د احمد رضا خان داسې وئيل، د ذاتِ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ بې اَدَبِي ده.

**محترمو لوستونکو!** تاسو د ”جوہانس برگ سے بریلی“ د مصنف پيش کړې شوې عبارت او په هغه عبارت باندې د هغه تبصِره هم اولوستله. په دې پوره عبارت غور اوکړئ. آيا د يو لفظ نه هُم ګنې دا ثابتيږی چه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د هغه جنازې نمونځ اوکړو؟ يا د اعلٰی حضرت بريلوی د الفاظو نه آيا دا ثابتيږی چه هغوئی د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ امامت کړې دې؟ پوره عبارت او د اعلٰی حضرت د الفاظو نه يقيناً داسې يوه خبره هم بالکل نه ثابيږي. په دې وجه اعتراض بِڅپله باطل شو.

غور اوکړئ: خوب بل چا ليدلې دې. بيا هغه خپل خوب بيان کړې دې، د هغې نه پس اعلٰی حضرت بريلوی رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَيْه فرمائي چه اَلْحَمْدُ لِله د هغې جنازې امامت ما کړې وو. د دې نه دا مفهوم څنګه اخذ کړې شو چه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ هم د هغه جنازې نمونځ ادا کړې وو؟ او يا دا [مطلب ترې څنګه اخذ کړې شو] چه اعلٰی حضرت د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ امامت اوکړو؟ (معاذَالله). بيشکه دا په اعلٰی حضرت باندې بهتان دې. د خوب او د اعلٰی حضرت بريلوی رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَيْه د بيان حقيقت دا دې چه د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د هغه عاشقِ صادق په وفات باندې رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د خپل رحمت او شفقت په سبب په خپل هغه غلام باندې د رحم کولو د پاره تشريف راوړې وو او د هغه عاشقِ

صادق جنازه ئې اولیدله.1

کله چه اعلیٰ حضرت بریلوی رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ ته خبر ورکړې شو چه هغه کس په بارګاهِ رسالت صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم کښې دومره مقبول دې چه په هغه باندې د مهربانئ کولو د پاره حُضُورِ اکرم صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم پخپله تشریف راوړې وو نو اعلیٰ حضرت چه په خوشحالئ کښې څه فرمائیلي دي د هغې نه هُم دا ظاهریږی چه د هغه خوش نصیبه د جنازې د نمانځه د امامت کولو شرف ما ته حاصل شوې وو. د اعلیٰ حضرت بریلوی رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ جملې ته د غلط مفهوم ورکولو وجه د اعلیٰ حضرت سره صرف د بغض او دښمنئ ساتلو نه سِوا بل هیڅ نه دي.

په امامِ اهل سنت اعلیٰ حضرت احمد رضا خان بریلوی رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ باندې لوئ بهتان لګوونکې د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف او د دیوبندی وهابي ډلې منونکې دِ لږ په آئینه کښې خپل بد رنګ مخ هم اووینې. د هغوئې د "شیخ الاسلام" جناب حسین احمد مدَنی په باره کښې د دیوبندیانو یو مُلّا، مرغوب احمد لاج پوری، الجمعیة، دهلی د "شیخ الاسلام نمبر" په صفحه۳۲٦ کښې لیکي:

---

1 واضِحه دِ وي چه مونږه اهلِ سنت وجماعت حُضُورِ اکرم صلی اللہ علیہ وسلم جسماني طور حاضر ناظر نه منو، روحانی او نورانی طور ئې منو. زمونږه عقیده ده چه رسولُ الله صلی اللہ علیہ وسلم د خپل ژوندي وجود سره په مدینه منوَّره کښې دي او د خپل نورانیت او روحانیت سره د هر مومِن په سینه کښې دي. د هغوئې نورانیت او روحانیت په ټول عالَم کښې خور دي.

”په جامع مسجد کښې د جُمُعې په وجه ډيره ګڼړه وه، نمونځ ګزارو فقير (مرغوب احمد) ته عرض اوکړو چه تاسو حضرت (ابراهيم) خليل الله (عليه‌السلام) ته سفارش اوکړئ چه حضرت خليل الله عليه‌السلام مولانا (حسين احمد) مدَنی ته د جُمُعې د امامتئ حُکم اوفرمائي. فقير (مرغوب احمد) جرأت اوکړو او عرض ئې اوکړو نو حضرت خليل الله عليه‌السلام مولانا (حسين احمد) مدَنی ته د جُمُعې د اِمامتئ کولو حکم اوکړو. مولانا مدَنی خطبه اووئيله او د جُمُعې د نمانځه امامت ئې اوکړو. حضرت ابراهيم عليه‌السلام د مولانا (حسين احمد) په اقتداء کښې د جُمُعې نمونځ ادا کړو، فقير (مرغوب احمد) هم په مقتديانو کښې شامِل وو. فَالْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى ذٰلِكَ حَمْدًا كَثِيْرًا كَثِيْرًا، حضرت سَيِّدُنا ابراهيم عليه السلام ضعيف العمر وو، ګيره مبارکه ئې سپينه وه.“

**محترمو لوستونکو!** په امامِ اَهلِ سنت اعلٰی حضرت احمد رضا خان بريلوی رَحمَۃُاللہِ‌تعالٰی‌عَلَیْہ باندې لوئ بهتان لګوونکې د ديوبندي وهابي ډلې منونکې خپله دا بے حيائي نه وِيني چه پخپله په خپل قلم په صفا الفاظو کښې ليکي چه هغوئي نبــی ته پخپله اووئيل چه زمونږه مُلَّا د ځان امام جوړ کړئ او هغه بے حيا مُلَّا هم د نبــی اِمام جوړ شو او جُمعه ئې ورکړه او حضرت ابراهيم عليه‌السلام ئې خپل مقتدی جوړ کړو. او په دې بې حيائې باندې ئې د الله بے پناه شکر ادا کوی. (معاذَالله)

ڈھٹائی تو دیکھو ذرا بے حیا کی — امامت کرے وہ ابو الانبیاء کی

**ترجمه:** جُرأَت اوګورئ د بے حیا چه امامت کوي د اُبو الانبیاء

**نور اوګورئ:** شیخ سعید تکروني وائي چه: "ما خوب اولیدو چه سرورِ عالَم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ تشریف فرما دي او ما ته چا اووئیل چه دا رسولُ الله (صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ) دي او یو عالِم هندی خلیل احمد نومې وفات شوې دې، د هغه په جنازه کښې د شریك کیدو د پاره ئې تشریف راوړې دې." (تذکرة الخلیل، ص ٤٦٩، مطبوعه مکتبه قاسمیه، سیالکوټ، مصنف عاشق اِلٰهی میرتھی)

په "اصدق الرویا" حصه دوم ص۱۰، النور بابت ماهِ صفرالمُظفر ۱۳۵۵ھ کښې دي چه یو کس محمود حسین مدرسه شاهي مراد آباد اشرفعلی تهانوی ته خپل خوب لیکلې رالیږلې وو. خوب دا دې: "ډیرې ورځې شوې دي چه کم ترین یو خوب ستاسو متعلق لیدلې وو خو سمدست مې د امتحان د مشغولتیا په وجه خبر در نه کړې شو، او هغه دا دې چه یو کس ما ته د شپې وائي چه مولانا (تهانوی) وفات شوې دې او زمونږ سره د ناستې ولاړې والا یو سړې زمونږ خوا ته راشي او وائي چه زه رسولُ الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ ته د خبر ورکولو د پاره ځم. بیا هغه کس لاړو او د حُضُور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ مزار ته حاضر شو او آواز ئې اوکړو چه مولانا (تهانوی) وفات شوې دې. حُضُور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د خبر په اوریدو فوراً د قبر مبارك نه راپاڅیدلو او ستاسو د جنازې د پاره روان شو. د خوب مضمون مکمل شو."

تهانوی د دې خوب جواب ورکوې، ارشاد فرمائي: "د خوب اجمالی

تعبیر دا دي چه

کششے کہ عشق دارد نگزارد بدیں ساں    بہ حیات گر نیائی بہ جنازہ خواہی آمد

یعنی جنازې له تشریف راوړل خو د دې نه زیاته مهربانی ده کومه چه په اصل شعر کښې لیك ده.“

د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف دِ اووائي چه د خلیل احمد او د اشرفعلی جنازه چا کړې وه؟ او په دغه جنازو کښې رسولِ اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ شریك شوې وو که نه؟ که نه وو شریك شوې نو خوب بیانولو والا دروغژن شو او که نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ پکښې شریك شوې وو نو جنازه لوستونکي وهابی دیوبندی علماء د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ امامان جوړ شو او د رسولِ کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د خپل مقتدی جوړولو په وجه ګستاخه او بے حیا قرار شو که نه؟ باقي تبصره د ”جوہانس برگ سے بریلی“ د مصنف د جواب راتلو پورې محفوظه ساتم.

په اصدق الرؤیا، حصه دوم، ص۲۳، النور بابت ماه جمادی الاولیٰ ۱۳۵۵ھ کښې لیك دا خوب هم اوګورئ:

”**خوب**“: دا خوب مې اولیدو چه د یوې اوچتې کرسئ جمات دې او د جُمُعې د نمانځه د پاره صفونه جوړیږي او احقر (شهاب الدین) د جمات په انګڼ کښې دې. یو کس اووئیل چه دا آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ دي او آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د احقر ګس طرف ته وو. احقر د آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ سره مصافَحه اوکړه او احقر د آنحضرت صَلَّى اللهُ

عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د پاره خپل رومال خور کړو. په دې کښې د جمات په انګڼ کښې دوه کسان په خپل مینځ کښې په جګړه شو. آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د هغوئي طرف ته متوجه شو. د آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ جامې مبارکې سپينې وې. خو د آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ حُليه مبارکه احقر ته ياده نه ده. او په هغه جمات کښې تاسو جناب محترم (يعني تهانوی) د جُمُعې د نمانځه امامتي کوي او آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د احقر لاس اونيسي او د ځان مخکښې صف ته ئې ورمخکښې کړي. د دې خوب په ليدو باندې راته د ورځې يو داسې قِسم خوشحالي محسوسيدله چه د هغې د بيانولو د پاره نه پوهيږم چه کوم الفاظ اوليکم.

شهاب الدين کشميري کيټ، دهلی.“

دا خوب تهانوی په خپله ”رساله النور“ کښې پخپله چاپ کړې دې.

د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف وائي چه د رسولُ اللّٰه (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ) امامت ښکاره بے حيائي ده، د هغه د وينا مطابق په دې خوب کښې د تهانوی د ښکاره بے حيائې مظاهره اوګورئ چه تهانوی خو د رسولُ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ امام جوړ شو او خوب ليدونکي شهاب الدين ته هم د رسولُ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ سره په څنګ کښې اودريدل د خپل شان خلاف ښکاره شو، ځکه هغه د رسولُ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ نه مخکښنې صف ته تللو باندې دومره خوشحاله شو چه د هغې د بيانولو د پاره ورسره الفاظ نشته.

د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف دِ اووائي چه د اعلیٰ حضرت د عقیدتمند په خوب کښې خو بالکل داسې څه ذِکر نشته چه اعلیٰ حضرت بریلوی د رسولِ اکرَم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ امامت کړې وي. خو دیوبندی وهابی ډلې په ذکر شوو ټولو خوبونو کښې دیوبندي وهابي مُلّایان د انبیاؤ عَلَیهِمُ الصلاۃُ والسلام ښکاره امامان جوړ شوي دي. آیا د دې باوجود دیوبندیان وهابیان د خپلو مشرانو په بے حیائۍ او خپله بے حیائۍ کښې څه شك کَنړي؟ واضحه دِ وي چه د دیوبندیانو وهابیانو ډلې حکیم الامت دا خوبونه ډیر په فخر شائع کړي دي، یعنی په خپلې بے حیائۍ او ګستاخۍ باندې هغه ته ناز دې. الله کریم دِ مونږه د دوئي نه په خپل امان کښې اوساتي.

جوکریں تنقیصِ شانِ شاہِ دِین لَعْنَۃُ اللهِ عَلَیْهِم اَجْمَعِیْن

د شعر ترجمه: څوك چه د حُضُور صَلَّی اللهُ تَعَالٰی عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم د دِین بې اَدَبي کوي په هغه ټولو دِ د الله تَعَالٰی لعنت وي.

دا بیشکه د الله تَعَالٰی په نیازبینو بندګانو باندې، د بهتان لګولو په دې دُنیا کښې د دې دیوبندیانو وهابیانو سزا ده، چه کوم د دروغو قول او فعل دوئي رښتیني مسلمانانو ته منسوب کوي، هغه د دې دیوبندیانو وهابیانو د خُلې او قلم نه پخپله د دوئي د پاره ثابتیږي. او دغسې دوئي د خپل بیان په وجه سخت مجرمان ثابت شي. د دې باوجود هُم که دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو په رښتیاؤ توبه اُونکړه نو د دُنیا

او آخرت سخته خَساره او عذاب د دوئي مُقَدَّر دي.

⚜ **محترمو لوستونکو!** د دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو غټو او وړو علماؤ چه د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ، صحابهٔ کِرامو، اهل بیتِ عظام، د خوږ نبـی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د بیبیانو **اُمَّهاتُ الْمُؤمِنِین** او د اولیاءُ الله (رَضِيَ اللهُ تعالى عَنْهُم) څومره بے ادبي کړي ده، او په کومو ښکاره الفاظو کښې ئې چه بے اَدَبي کړي ده، که هغه په پوره تفصیل سره اولیکم نو تاسو به په یقین سره اووائې چه د "شیطانی آیاتو" د مصنف ملعون شیطان رُشدی او دیوبندیانو وهابیانو علماؤ په تحریرونو کښې هیڅ فرق نشته. افسوس چه دې دیوبندیانو وهابیانو د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د ښکاره بے اَدَبئ او ګستاخئ نه ډك په سوونو خوبونه په خپلو کتابونو کښې لیکلي دي او په هغه خوبونو باندې فخر کوي، او د توهینِ رسالت نه ډك د هغه کتابونو تبلیغ او اشاعت کوي، او د خپلو هُغه علمائے دیوبند په شان بیانولو کښې ژوند تیروي کومو علمائے دیوبند چه د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ حد درجه ګستاخي او بې ادبي کړي ده. دا دیوبندیان وهابیان تبلیغیان علماء د خپلې بدئ لرې کولو سوچ نه کوي، دوئي خپل ګنده جرمونه نه وینی، بلکه د ربښتیني غلامانِ رسول، علمائے حق اهلِ سنت صحیح خبرو ته د غلط وئیلو کوششونه کوي. مشهوره مقوله ده چه "چاند پر تھوکنے سے چاند کا کچھ نہیں بگڑتا بلکہ تھوک خود تھوکنے والے کے منہ پر پڑتی ہے"

**ترجمه:** سپوږمۍ ته لا ړې توکلو سره په سپوږمۍ څه اثر نه پریوځي بلکه لا ړې ټخپله د توکلو والا په مخ رالویږي.

دیوبندیان وهابیان تبلیغیان هم د خپلو دې حرکتونو په وجه پخپله ځان رُسوا کوي. د الله تعالیٰ نه دُعا ده چه هغه دِ مونږه صحیحُ العقیده سُنِّي مسلمانان د دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو او د ټولو باطلو ډلو د علماؤ او عوامو نه او د هغوئي د شرنه **محفوظ** اوساتي او مونږ ته دِ په مذهبِ حق اهلِ سنت و جماعت باندې ثابت قدمی نصیب کړي او زمونږه خاتمه دِ په خیر اوفرمائي.

د "*جوہانس برگ سے بریلی*" پارټ ۲ په صفحه ۲۲ کښې دي چه:

"یو رضا خانی وائي:

*نکیرین آکر مرقد میں جو پوچھیں گے تو کس کا ہے*

*ادب سے سر جھکا کر لوں گا نام احمد رضا خان کا*"

**ترجمه:** په قبر کښې چه را نه منکَر نَکِیر تپوس اوکړي چه ته د چا ئې نو په ادب به سر ټیټ کړم او د احمد رضا خان نوم به واخلم.

د "*جوہانس برگ سے بریلی*" مصنف وائي چه "هغه دا نه وائي چه زه د الله بنده یم (واضِحه دِ وي چه د "بنده" معنیٰ هغه "Servent of Allah" یعني د الله خدمتګار کړي ده)، دا هم نه وائي چه د رسولُ الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ اُمَّتی یم. صرف د احمد رضا نوم اخلي، پخپله ځان رضا خاني ظاهروي."

د رضا خانی د الفاظو جواب خو داسې ورکول پکار دي چه

غاښونه ئې مات شي.[1] خو بیا هم داسې وینا **"د دیو بندګانو"** سره ښائي. د دې اعتراض جواب د اشرفعلی تهانوی نه واورئ:

په الاضافات الیومیه (النور بابت ماه ربیع الاوّل ۱۳۵۵ھ) **ج۲ صفحه۲۵** کښې تهانوی لیکي:

"یو دوبي وفات شو. کله چه دفن کړې شو نو مُنکَر نَکیر ورله راغلل او سوال ئې ترې اوکړو: **مَن رَّبُّك، مَا دِینُك، مَنْ هٰذا الرَّجُلُ.** هغه په جواب کښې وائي چه ما ته څه خبر نشته، زه خو د حضرت غوث الاعظم رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ دوبي یم. او په حقیقت کښې دا جواب د هغه د ایمان اِجمالی بیان وو چه زه د هغه هَم عقیده یم. کوم چه د هغه خدائے دې هغه زما خُدا دې، کوم دِین چه د هغه دې، هغه زما دِین دې، په دې باندې دوبي خلاصې اوموندلو."

اوس دِ اُوفرمائي د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف چه هغه د خپل ګُرو اشرفعلی تهانوی په باره کښې څه وائي؟ د هغه خپل تهانوی صاحب د هغه د اعتراض تحقیقي جواب ورکړو.

او دویم جواب د دیوبندیانو د ډیر غټ عالِم تهانوی صاحب د استاذ جناب محمودالحسن دیوبندی نه واورئ، هغه فرمائي:

---

1 په برصغیر کښې د دیوبندی وهابی ډلې امام جناب شاه اسماعیل دهلوی دې. د هغه په نسبت که دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو ته "اسمٰعِیلي" اووئیل شي نو هغوئي له هیڅ کله بد ګنړل نه دِي یکار.

" قبر سے اُٹھ کے پکاروں جو رشید و قاسم
بوسہ دیں لب کو مرے مالک و رضواں دونوں
جاؤں عرصات میں جب خائف و نادم تہی دست
دونوں ہاتھوں میں ہوں ان دونوں کے داماں دونوں"

(کلیات شیخ الهند، ص۱۷، مطبوعه مکتبه محمودیه، لاهور)

**د شعرونو ترجمه:** (۱) وائي چه کله د قبر نه پاڅم نو رشید ګنګوهي او قاسم نانوتوي به یادووم نو د جنت فرښتې مالك او رضوان به زما شونډې ښکلې کړي،
(۲) کله چه زه په یَره او پښیمانئ کښ او خالي لاس لاړ شم، نو په دواړو لاسونو کښ به مې وي د دوئي دواړو (یعني رشید احمد ګنګوهي او قاسم نانوتوي) لمَن.

د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف دِ اووائي چه د ګنګوهي او نانوتوي نوم اخستل او لمَن نیول به څنګه فائده ورکوي؟ د جواب انتظار به کووم.

په پارټ ۲ صفحه ۱۹ کښ د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف د خپل امام اسماعیل دهلوی بالاکوټی د کتاب "صراط مستقیم" نه یو عبارت نقل کوي او د هغې وضاحت کوي او کوشش کوي چه دا ګنده عبارت په صوفیانه طریقه ډیر پاك عبارت ثابت کړي. اصل عبارت او د هغې جواب اوګورئ:

د تقوية الایمان مصنف اسماعیل دهلوی بالاکوټي د خپل کتاب "صراط مستقیم" په صفحه ۸٦ (مطبوعه مطبع مجتبائي دهلی ۱۳۰۸ھ) کښ په عُنوان د "فصل سوم در ذکر مخلات عبادات تفصیلاً و طرق معالجات آں" نه لاندې لیکي:

"بمقتضائے ظلمات بعضها فوق بعض از وسوسه زنا خیال مجامعت زوجه خود بهتر است وصرف همت بسوئے شیخ و امثال آں از معظمین گو جناب رسالت مآب باشند بچندیں مرتبه بدتر از استغراق درصورت گاؤ خر خوداست که خیال آں با تعظیم و اجلال بسوید اے دل انسان می چسپد بخلاف خیال گاؤخر که نه آں قدر چسپید گی می بود نه تعظیم بلکه مهان و محقر می بود و ایں تعظیم واجلال غیر که در نماز ملحوظ و مقصود می شود بشرک می کشد----"

**ترجمه:** "ځینې تیَرې په ځینو تیَرو د پاسه وي چه د اقتضا مطابق د زنا د وسوسې نه د خپلې ښځې سره د **مجامعت** (یعني د کور والي) کولو خیال بهتر دې او د پیر یا د دې په مِثل بزرګانو طرف ته د خیال تلل هم، اګرچه جنابِ رسالت مآب صَلَّی اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمَ وي، ډیر زیات بدتر دې، د خپل غوئي او خر په خیال کښې د اخته کیدو نه، ځکه چه د دې (بزرګانو) خیال په تعظیم او بزرګۍ سره راځي او د انسان د زړه سره نښلي، په خِلاف د غوئي او د خر د خیال نه، ځکه چه (په هغې کښې) نه دومره د زړه تَوَجّه وي او نه تعظیم، بلکه (داسې خیال) حقیر او ذلیل وي. او د غیر دا تعظیم او بزرګي کومه چه په نمونځ کښې ملحوظ او مقصود شي، شرك طرف ته راښکل کوي."

په دې ناپاکه عبارت غور اوکړئ: چه د زنا د وسوسې نه د خپلې ښځې سره د کوروالي خیال راوړل خو بهتر دي خو د بزرګانِ دین او حُضُور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمَ طرف ته صرف د خیال تلل هم د غوئي او خر په خیال کښې د ډوبیدو نه په درجو بدتر دي. په دې عبارت کښې د بزرګانِ دِین او د حُضُور نبی کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمَ خومره سخت توهین دې. (العیاذُ بِاللّٰه)

د حُضُور نبـی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ خیال ته ئې د غوئي او د خر د خيال نه بدتر په دې وجه وئيلې دې چه د حُضُور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ خيال د تعظيم سره راځي، او د هغوئي مطابق په نمانځه کښې د رسول تعظيم شِرك طرف ته بوتلل کوي، چنانچه د عبارت دا الفاظ د نظر وړاندې ساتئ چه "خيال آں با تعظيم و اجلال" [يعنى خيال په تعظيم اوبزرګئ سره] اوګورئ په دې الفاظو کښې دي چه د هغوئي خيال په تعظيم او بزرګئ سره راځي او د غوئي او د خر په خيال کښې تعظيم نه وي، بلکه سپکاوالې وي ځکه هغه بد نه دې. اوس سوال دا دې چه د اسماعيل دهلوی او د هغه منونکو اسماعيليانو وهابيانو نمونځ به څنګه وي؟ ځکه چه په نمانځه کښې قرآن شريف لوستل فرض دي او که د قرآن شريف داسې آيتونه يا سورت لولي چه په هغې کښې د حُضُور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ تعريف يا صِفَت يا د نوم مبارك ذکر وي نو خيال خو به ضرور راځي، خاص کر په **اَلتَّحِيَّات** کښې د نبـی پاك صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ په خدمت کښې په اِراده او اِنشاء [يعني خوښه] سلام عرض کيږي او د حُضُور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د رسالت ګواهي ورکولې کيږي او بيا د حُضُور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ په آل باندې درود شريف لوستل کيږي. هغه وخت خو د حُضُور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ خيال ضرور راځي، دا څنګه کيدې شي چه په نبـی پاك صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ دِ سلام وئيل شي، د نبـی پاك صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د رِسالت ګواهی دِ ورکول کيږي، په هغوئي دِ درود شريف لوستل

کيږي او د هغوئي خيال دِ په زړه کښ نه را ځي؟ او په خيال کښ د راتلو صرف دوه صورتونه دي، يا به د تعظيم سره [په خيال کښ] راځي او يا په تحقير سره [په خيال کښ]! که د تعظيم سره راشي نو شِرك طرف ته راښکل کوي نو بيا نمونځ ځنګه اوشو؟ او که په تحقير سره راشي نو کفر اوشو نو بيا به ځنګه نمونځ وي؟ (ځکه چه د حُضُور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمَ تحقير [يعني سپك ګڼړل] يقيناً کفر دې) نو اوس د دې کفر او شِرك نه د بچ کيدو دريم صورت دا دې چه اَلتَّحِيَّات نه لوَلي، خو مسئله دا ده چه په دې صورت کښ به نمونځ نه ادا کيږي. اوس وائې چه د دې ديوبنديانو وهابيانو نمونځ به ځنګه وي؟ يعني که اَلتَّحِيَّات وائي نو هم نه کيږي او که نه ئې لولي نو هم نمونځ ئې نه کيږي، چه د دوئي خپل نمونځ نه کيږي نو په دوئي پسې به د بل چا نمونځ ځنګه اوشي؟

خُلاصه دا شوه چه د اسماعيل دهلوی بالاکوټی د دې عبارت په وجه نمونځ خو د يو ديوبندی وهابی د سره کيږي نه، خو دا کيدې شي د اَلتَّحِيَّات نه لوستلو په صورت کښ دا ديوبنديان وهابيان شايد چه د کفر و شرك نه بچ شي، که نمونځ وي اوشي او که نه. (لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْم) دا بيشکه د نبـی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمَ د بې اَدَبئ سزا ده چه دا خلق د سره د نمانځه نه محرومه شو.

**دويم مخ هم اوګورئ:**

ديوبندی عالم عبدالمَاجد دريا بادی جناب اشرفعلی تهانوی ته په

خط کښې ليکلي وو چه: "په نمانځه کښې مې د زړه نه لګيدو مرض ډير پخواني دې، خو کله دا تجربه شوي ده چه عين د نمانځه په حالت کښې چه کله د خپل ځان په ځائ، فرض کړم چه جناب (تهانوی) يا ... نمونځ کوي، نو د دومره وخته پورې مې په نمانځه کښې زړه اولګي، خو مصيبت دا دې چه دا تصوّر مې هم د ډيره وخته پورې قائم نه پاتي کيږي، بهرحال که دا عمل ښه وي نو زما رهنمائي دِ اوکړې شي، ګني د بيا د پاره به احتياط کووم."

(د تهانوی) جواب مِلاؤ شو: "**محمود** [يعني ښه] دې، چه نورو ته خبر نه وي، ګني زهرِ قاتل دې." (حکيمُ الامت، ص٦٣، ٦٤)

په اشرفُ العلوم، ص٨٤، بابت ماهِ رمضان ١٣٥٥ھ(بعنوان "الکلام الحسن" مطبوعه کتب خانه امداد الغرباء، سهارن پور) کښې دي: "چا په خط کښې ليکلي وو چه که ستاسو (يعني د تهانوی) تصَوُّر کووم نو په نمانځه کښې مې زړه لګي. (تهانوی) اوفرمائيل: جائز دي."

**محترمو لوستونکو!** د ديوبنديانو وهابيانو مشر امام اسماعيل دهلوی (قتيل) خو په نمانځه کښې د رسولِ کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ طرف ته خيال تللو ته خومره بد وائي او د دې قتيل امام نائب، تهانوی په نمانځه کښې خپل خيال راتلو او ساتلو ته "**محمود** (ډير ښه) او جائز" وائي.

اوس دِ د "*جوبانس برگ سے بریلی*" مصنف اووائي چه که د تهانوی خيال په نمانځه کښې د تعظيم سره راوَستلې شي نو ستاسو د امام اسماعيل

دهلوي بالاکوټی د فتوې مطابق به نمونځ نه کیږي، لِهٰذا د غوا، غوئي او د خر د خیال په شان به د تهانوی خیال راوَستل جائز وي.

څه فرمائي علمائے دِین په دې باره کښې، چه د تهانوی خیال د تحقیر سره صحیح دې؟ که علمائے دیوبند دا اوفرمائي چه ''نه هیڅ کله صحیح نه دې.'' نو بیا هغوئي له منل پکار دي چه د هغوئي د امام اسماعیل دهلوی بالاکوټی عبارتونه کُفریه او غلط دي. او که تاسو خپل اسماعیل دهلوي ته صحیح وائې نو بیا به د تهانوی صاحب په باره کښې څه فتوٰی وي؟

د عبدُالمَاجد دریاآبادي او د اشرف العلوم په حواله د اشرفعلی تهانوی په دې ذِکر کړې شوو عبارتونو باندې د نور د بحث کولو حق د هٰغه وخته پورې **محفوظ** ساتم چه د علمائے دیوبند د طرفه جواب راکړې شي.

**محترمو لوستونکو**! د ''*جوہانس برگ سے بریلی*'' د مصنف یوه بله توره کارنامه هم اوګورئ: د قرآني آیت **وَمَآ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا رَحۡمَةً لِّلۡعٰلَمِيۡنَ** ترجمه ئې په پارۀ۲ ص۱۱ کښې داسې لیکلې ده:

"Wa ma arsalnaaka illa rahmatal-lil-Aalameen"

(verse 107 Surah 21)

"And we sent thee not save as a mercy for the peoples"

**ترجمه**: او مونږه ته نه ئې لیږلې، خو د خلقو د پاره رحمت.

آیا دا ظلم نه دې؟ د قرآنِ کریم د الفاظو صحیح ترجمه کولو په ځائ

غلطه ترجمه کول، په قرآن کښې تحریف نه دې نو څه دي؟ ظلم هُم دې ته خو وائي. د عالَمِین (WORLDS) ترجَمه ئې خلق (PEOPLES) کړې ده. دوه خبرې کیدې شي یوه خو دا چه دا دیوبندیان وهابیان، د علم نه ناخبره دي، دویمه دا چه دا دیوبندیان وهابیان علماء قرآن بدلوي. ترڅو پورې چه دا ټخپله ځان ته علماء وائي نو د خپل علم انکار خو نه شي کولې. نو ښکاره خبره ده چه بیا دوئي قرآن بدلوي. الله تعالیٰ دِ مونږه د داسې ظالِمَانو نه په خپله پناه کښې اوساتی.

د ”جوہانس برگ سے بریلی“ د پارټ۲، په ص۱۱، ۱۲ کښې د ګنګوهي علیه ما علیه د عبارت په باره کښې چه د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف د هغې د کلیئر کولو د پاره څه لیکلي دي، د هغې نه په ګنګوهی باندې زمونږه اعتراض ته نور تقویت حاصل شو.دې مصنف د خپل وضاحت په ذریعه خپل ګنګوهی بچ کول غوښتل خو هغه ټخپله غرق شوې وو او د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف ئې هم غرق کړلو.

**لوستونکو اوګورئ:** د ګنګوهی اصل عبارت او د هغې جواب.

ګنګوهي وائي: ”لفظ رَحۡمَةً لِّلۡعَالَمِینَ خاص د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ صفت نه دې بلکه نور اولیاء او انبیاء او علمائے ربَّانِیّین هم د عالَم د پاره د رَحمت سبب وي اګرچه جنابِ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ په ټولو کښې اعلیٰ دې، لِهٰذا که د بل د پاره دا لفظ په تاویل سره اووئیل شي نو جائز دي. فقط بنده رشید احمد ګنګوهی.“(فتاوٰی رشیدیه، حصه دوم،

ص۹، مطبوعه کتب خانه رحیمیه، سُنهری مسجد دهلی. تالیفات رشیدیه، ص۱۰٤)

په دې عبارت کښې خومره په صراحت سره [یعني واضِحه] د حُضُور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د مخصوص صفت "رَحۡمَةٌ لِّلۡعَالَمِين" انکار دې. ګنګوهی صفا وائی چه لفظ "رَحۡمَةٌ لِّلۡعَالَمِين" د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ خاص صِفَت نه دې. او په دې کښې ګنګوهی د خپل ځان د شریك کولو د پاره اووئیل چه علمائے رَبَّانِيّين ته هم رَحۡمَةٌ لِّلۡعَالَمِين وئیل جائز دي.

هر هغه کس څوك چه د عبارت پوهه لري هغه ښه پوهیږي چه په فتاوٰی رشیدیه کښې د ذِکر شوي عبارت درې حصّې دي: دعوٰی، دلیل، تفریع، "لفظ صِفَت خاص د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ نه دې" دا دعوٰی ده. "بلکه نور اولیاء، انبیاء او علمائے ربَّانِيّين هم د عالَم د پاره د رحمت سبب دي اګرچه جنابِ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ په ټولو کښې اعلٰی دې" دا دلیل دې." لِهٰذا که په بل چا باندې دا لفظ په تاویل سره اووئیل شي نو جائز ده" دا تفریع ده. (تفریع: خاخ ویستل)

د ګنګوهی صاحب دا کلام ښکاره وائي چه "رَحۡمَةٌ لِّلۡعَالَمِين" د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ مخصوص صِفَت نه دې بلکه علمائے ربَّانِيّينو ته رَحۡمَةٌ لِّلۡعَالَمِين وئیل جائز دي. پاتي شو د "تاویل" قید، نو دا ګنګوهی د عامو خلقو د ښبلولو د پاره یو آړ جوړ کړې دې، ګنې دلیل اګرچه د مدعا ثبوت نه ورکوي خو د دې ګنګوهي مقصد خو خاص صِفَت ختمول دي.

اوس د ديوبنديانو وهابيانو نه پوښتنه اوکړئ چه د دوئي په نِزد علمائے رَبَّانِيّين څوك دي؟ آيا سُنِّي (بريلوی) دي؟ يا غيرمُقَلِّد دي، يا شيعه دي؟ ښکاره خبره ده چه بريلويانو ته خو دوئي بدعتيان وائي. غيرمُقَلِّدو او شيعه ګانو ته ګمراه او کافِر وائی او (ديوبندی وهابی) خپل ځان ته علمائے حق او علمائے ربَّانِيّين وائي. نو د دې مطلب دا شو چه ديوبنديانو وهابيانو ته هم **رَحْمَةٌلِّلْعَالَمِين** وائي خو تاويل دا کوئ چه حُضُور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ لوئ **رَحْمَةٌلِّلْعَالَمِين** دې او د ديوبند مُلَّايان واړه **رَحْمَةٌلِّلْعَالَمِين** دي، څنګه چه اسماعيل دهلوی په کتاب **تقويةُالايمان** کښې ليکلي دي چه "حُضُور زمونږه مشر ورور دې." **(معاذالله)**

**محترمو لوستونکو!** ښه پوهه شئ چه د ديوبنديانو وهابيانو د ټولو نه غټ مقصد هم دا دې چه د انبياؤ او اولياؤ خاص طور د حُضُور سَيِّدُنا محمد مصطفٰی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ ټول خاصيتونه ختم کړئ او انکار اوکړئ، ځکه چه ترڅو پورې د خصوصياتو انکار اُونه کړئ، د هغه وخته پورې برابري نه شي کيدې، چنانچه د (شرك فی الرسالت) يو والي او برابري کولو د پاره او د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ په **مخصوص** صِفَت **رَحْمَةٌلِّلْعَالَمِين** کښې د شريك کيدو د پاره هغوئي اووئيل چه "که دا لفظ په تاويل سره اووئيل شي نو جائز دي اګرچه جنابِ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ په ټولو کښې اعلٰى دې." او په کوم يو صِفَت کښې اعلٰى کيدل د دې خبرې دليل دې چه په دې صِفَت کښې نور هم شريك

دي اګرچه هغه ادنیٰ دي. د ګنګوهی د دې عبارت نتیجه دا شوه چه حُضُور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ لوئ رَحْمَةٌ لِّلْعَالَمِین دي او د دیوبند مُلّایان واړه رَحْمَةٌ لِّلْعَالَمِین دي. (معاذ الله)

چنانچه کله چه ګنګوهی صاحب دا فتوٰی ورکړه نو د هغه په باره کښې جناب خلیل احمد انبیټوی دا اولیکل:

"کمینہ غلامان خلیل احمد اپنے ملجا وماوٰی، میزابِ رحمۃُ اللّٰہِ تعالیٰ علی العٰلمین، غیاثُ المریدین، غوث المسترشدین، نائب رسولِ ربِّ العالمین، قطب زمانہ، مجتہد عصرہ و اوانہ، حضرت مولائی و مرشدی مولانا مولوی رشید احمد صاحب دام اللّٰہُ ظلال برکاتھم علی العالمین......"

(تذکرۃ الرشید، ج۱، ص۱۴۹)

**ترجمه**: نالائقه غلامان خلیل احمد خپل ځائ د پناه او د مقصد، ناوه د الله تعالیٰ د رحمت په ټول جهان والؤ باندې، د مریدانو مددګار، د رهنمائي کوونکو مددګار، د رسول الله نائب، د زمانې قطب، د خپلې زمانې مجتهد، حضرت زما آقا زما مرشد مولانا رشید احمدصاحب الله تعالیٰ دِ د دوئي د برکتونو سورې په ټول جهان همیشه اوساتي.

اوګورئ په دې کښې ګنګوهي صاحب ته "میزابِ رَحْمَةُ اللّٰهِ تَعَالٰی عَلَی الْعٰلَمِین"(په ټول جهان باندې د الله تعالیٰ د رحمت ناوه) لیکلي دي او په آخر کښې لیکلي دي "دامَ اللّٰهُ ظِلالَ بَرَکَاتِهِم عَلَی الْعٰلَمِین"(الله تعالیٰ دِ د دوئي د برکتونو سورې په ټول جهان همیشه اوساتي). د دې دواړو عبارتونو دا معنیٰ شوه "رَحمةٌ لِّلعالَمِین، برکاتٌ لِّلْعالَمِین." څنګه چه نائبِ رسولِ رَبِّ اَلْعالَمِین په عبارت کښې اَلْعالَمِین دې، دغه شان په دواړو عبارتونو

کښې ''اَلْعَالَمِین'' دې. هر کس په دې پوهيږي چه د دې عبارت نه د انبيټوي مطلب دا دې چه څنګه الله تعالیٰ د ټول جهان والؤ رب دې (د هغه د ربوبيت يو څيز هُم خارِج نه دې) دغه شان ګنګوهی په ټول جهان والؤ باندې د الله تعالیٰ رحمت او برکت اوګرځيدو. (معاذالله) آيا د داسې خبرو باوجود دې ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو علماؤ ته ''اهلِ حق'' وئيلې شي؟ دا خلق ''رحمت'' نه دي د عالَمِ اسلام د پاره ډير لوئ ''زحمت[يعني عذاب]'' دي. الله تعالیٰ دِ مونږه د دوئي د شر نه په خپله پناه کښې اوساتي.

محترمو لوستونکو! دې خادمِ اهلِ سنت مخکښې هم عرض کړې وو چه زما سره په دې موضوع باندې دومره ډير مَواد دي چه که هغه شائع کول اُوغوارم نو بيشميره کتابونه به ترې جوړ شي.د کلام خلاصه دا ده چه د ''جوہانس برگ سے بریلی'' درې حصې ما ته را کړې شوې. په هغه درې وارو حصّو کښې د کتابچو مصنف دومره جرأت هم نه دې کړې چه خپل نوم ئې پکښې ليکلې وې. د هغه کتابچو د مندرجاتو د يوې يوې کربنې تفصيلي جواب که اوليکل شي نو يقيناً يو غټ کتاب به ترې جوړ شي. د ديوبنديانو وهابيانو په شان مونږ ته د غير مسلمو نه د دُنياوی مال او زَر وغيره په صورت کښې امداد هم نه را کول کيږي. مونږه خو د الله تعالیٰ د حبيب، نبـی مختار صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د در سوالګر يو. د غيرمسلمو د امداد نه دِ مونږه الـلّٰـه تَعَالٰی محفوظه اوساتي. مطلب

دا دي چه د ډیر غټ کتاب اخستلو طاقت او د مطالعې د پاره فارغ وخت هم د هر چا سره نه وي، بیا هم دې خادمِ اهل سنت تقریباً د هر اعتراض جواب پیش کړې دې او صرف د الله تعالیٰ د رضا او د خوږ رسول صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمْ د رضا د پاره د ناموسِ رسالت او د مذهبِ حق حفاظت کول زما مقصد دې. آرزو مې دا ده چه د ژبې او قلم په ذریعه د آخِرې پورې د ګستاخانِ رسول بیخ بنیاد ختم کړم او د الله تعالیٰ مخلوق د دې دِین د ډاکوانو د ناپاکه سازشونو نه خبر کړم چه سُنی مسلمانان د خپلو عقائدو حفاظت اوکړي.

د "جوہانس برگ سے بریلی" درې واړو حصو کښې د دې کتابچو مصنف دا هِمَّت خو هیڅ کله اُونه کړې شو چه هغه د امام اهلِ سنت اعلیٰ حضرت مولانا شاه احمد رضا خان بریلوی رَحْمَۃُ اللہِ تعالٰی عَلَیْہ په یو مستقل تصنیف باندې یو معقول اعتراض کړې وې. د اعلیٰ حضرت د زرو نه زیات تصنیفونه دي، چه هغه د علوم و معارف د ملغلرو نه ډك دي، بیا هم دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو ته صرف د تَعَصُّب او ضِد کولو او د حقیقت نه د سترګو پټولو په وجه که د بې ځایه او بې بنیاده اعتراضونو موقع کله په لاس ورغلي ده نو صرف په هغه کتابونو کښې، کوم چه د امام اهلسنت اعلیٰ حضرت بریلوي رَحْمَۃُ اللہِ تَعَالٰی عَلَیْہ په باره کښې نورو لیکلي دي. او مونږه اَهلِ سُنَّت و جماعت (فرقۂ ناجیه) د دیوبندیانو وهابیانو د غټو غټو علماؤ په اصل تحریرونو اعتراض

لرو، او هُم هغوئي د دیوبندی وهابی ډلي بنیاد دي. او هغه کُفریه عِبارتونه په هغه کتابونو کښ دي کوم کتابونه چه دا دیوبندیان وهابیان غالباً د قرآن و حدیث نه زیات عزیز ګنړي او د هغې په تبلیغ او خورولو کښ خپل ټول عمرونه او ټول طاقت ضائع کوي.

**محترمو لوستونکو!** ستاسو د معلوماتو د پاره د دیوبند د علماؤ د یو څو کتابونو څه اقتِباسات وړاندې کووم.1 صرف د دې د پاره چه تاسو ته ښه معلوم شي چه د الله د نیازبینو بندګانو خلاف د بدې وینا کوونکو دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د خپلو کارونو او ذهن حال څه دې؟ دا خلق ټخپله ځان ته د شریعت او سُنَّت پابند وائي او د دې ثابتولو کوشش کوي چه د دوئي نه سِوا باقي ټول رښتیني مسلمانان غلط دي.

د دیوبندیانو وهابیانو په شان غلط غلط نه بلکه د هغوئي ټکي په ټکي عبارتونه په اصل حالت کښ وړاندې کووم او په دې عبارتونو باندې ټخپله هیڅ تبصره یا وضاحت نه کووم بلکه لوستونکي به ټخپله پوهه شي چه داسې سوچ لرونکو علمائے دیوبند او د هغوئي دیوبندئ وهابئ ډلي حقیقت څه دې؟

(1) د ''تذکره مشائخ دیوبند'' ص ۹۶ (مطبوعه محمد سعید اینڈ سنز تاجران کُتب کراچي) د حاشیه یو عبارت اوګورئ: ''امی بی حضرت مولانا یحیٰی صاحب و

---

1 اِنْ شآءَ الله په خپل راروان تحریر کښ به نور هم داسې عبارتونه لوستونکو ته وړاندې کووم.

حضرت مولانا محمد الیاس کی نانی ہوتی ہے، نہایت عابد و زاہد خاتون تھیں، جس وقت انتقال ہوا تو ان کپڑوں میں جن میں آپ (امی بی) کا پاخانہ لگ گیا تھا، عجیب و غریب مہک تھی کہ آج تک کسی نے ایسی خوشبو نہیں سونگھی."

**ترجمه:** "مور ابئ چه د مولانا يحيٰي او مولانا محمد الياس نيا (يعني د مور مور) وه، ډيره عبادت ګزاره او د دُنيا نه بې رغبته ښځه وه، کله چه وفات شوه نو په هغه جامو کښ په کومو جامو چه د هغې (مور ابئ) ډك بول لګيدلي وو، عجيبه او ناشنا خوشبو وه چه تر اوسه پورې چا هغه شان خوشبو نه ده بوئ کړي."

(2) د تذکرةُ الرشيد، ج۱، ص۴٦، عاشق الٰهی ميرټهی او امداد المُشتاق (مطبوعه تهانه بهون) په صفحه ۷ باندې ديوبندی عالِم اشرفعلی تهانوی صاحب د خپل پير و مرشِد شان بيانوي او ليکي: "ایک دن اعلیٰ حضرت[1] (حاجی امداد اللہ صاحب) نے خواب دیکھا کہ آپ کی (شیعہ) بھاوج آپ کے مہمانوں کا کھانا پکا رہی ہیں کہ جناب رسول مقبول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ تشریف لائے اور آپ کی بھاوج سے فرمایا کہ: "اُٹھ تو اس قابل نہیں کہ امداد اللہ کے مہمانوں کا کھانا پکائے۔ اس کے مہمان علماء ہیں اس کے مہمانوں کا کھانا میں پکاؤں گا۔"

**ترجمه:** "يوه ورځ اعلیٰ حضرت (حاجی امدادُ الله صاحب) خوب ليدلې وو چه د هغوئې (شيعه) ورندار د هغوئې د ميلمنو د پاره طعام پخولو، جناب رسولِ

---

1 ديوبندي وهابي ډله ډيرې چغې وهي چه مولانا شاه احمد رضا خان ته "اعلیٰ حضرت" وئيل کيږي او داسې وئيل غلط دي خو تهانوی صاحب د خپل پيرومرشِد د پاره "اعلیٰ حضرت" ليکي نو ديوبنديان وهابيان د عدل و انصاف او اُصول و قواعد هيروي او د خپل ځان د پاره هر څه صحيح او جائز ګڼړي."

مقبول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ تشريف راوړو او د هغه ورندار ته ئي اوفرمائيل چه: "پاڅه ته د دې قابله نه ئې چه د امدادالله د ميلمنو طعام پوخ کړې. د هغه ميلمانه علماء دي د هغه د ميلمنو طعام به زه پخووم."

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ ته چه د کومو علمائے ديوبند (العياذُ بِاللہ) باورچي وئيل شوي وو په هغې کښې وړومبې جناب رشيداحمد گنگوهی دې. لږ د دې گنگوهی حال هم اوګورئ. گنگوهی وائي: "میں نے ایک بار خواب دیکھا تھا کہ مولوی قاسم (نانوتوی)، عروس (دلہن) کی صورت میں ہیں اور میرا ان سے نکاح ہوا ہے، سو جس طرح زن و شوہر میں ایک دوسرے کو فائدہ پہنچتا ہے اسی طرح مجھے ان سے اور انہیں مجھ سے فائدہ پہنچا ہے۔ انہوں نے حضرت کی تعریف کر کے ہمیں مرید کرایا اور ہم نے حضرت سے سفارش کرکے اُنہیں مرید کرا دیا۔ حکیم محمد صدیق کاندھلوی نے کہا: اَلرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَآءِ۔ آپ (گنگوہی) نے فرمایا ہاں! آخر ان (نانوتوی) کے بچوں کی تربیت کرتا ہی ہوں۔" (تذکرۃ الرشید، ج۲، ص۲۸۹، مطبوعہ ادارہ اسلامیات لاھور)

**ترجمه:** "يو ځل ما خوب ليدلې وو چه مولوی قاسم نانوتوی د ناوې په صورت کښې دې او زما د هغه سره نکاح شوې دې، پس څنګه چه د ښځې او خاوند نه يو بل ته فائده رسيږي، دغه شان ما ته د هغه نه او هغه ته زما نه فائده اورسيده. هغه د حضرت رَحْمَةُ اللّٰهِ تَعَالٰی عَلَيْه ستائنه اوکړه او زه ئې د هغوئي مريد کړم او مونږه حضرت ته سفارش اوکړو هغه مو د هغوئي مريد کړو. حکيم محمد صديق کاندهلوی وائي: اَلرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَآءِ.(يعني نارينه په زنانؤ باندې افسران دي) هغوئي (گنگوهی) اووئيل آو! آخِر د هغوئي (نانوتوی) د ماشومانو تربيت کووم."

"حضرت گنگوہی نے فرمایا کہ حق تعالیٰ نے مجھ سے وعدہ فرمایا ہے کہ میری زبان سے غلط نہیں نکلوائے گا۔" (ارواح ثلاثه، ص ٢٦٦، مطبوعه دارالاشاعت، کراچی)

**ترجمه:** "حضرت ګنګوهی وئيلي دي چه الله تعالیٰ زما سره وعده کړي ده چه زما د ژبې نه به غلط نه اوباسي."

چنانچه د هغه "حق وَينا" اوګورئ. هُم دا ګنګوهی صاحب فرمائي:

"(ہندوؤں کے پیشوا) رام اور کنہیا اچھے لوگ تھے، پچھلوں نے کیا کا کیا بنا دیا۔"

(تذکرۃُالرشید، ج٢، ص ٢٨٧)

**ترجمه:** "(د هندوانو مشران) رام او کنهيا ښه خلق وو، وروستنو خلقو ترې بل څه جوړ کړل."

نور اوګورئ، فرمائي: "اکثر بُزرگ پوشیدہ ہوکر خلقت کو راہِ ہدایت پر لاتے ہیں، اسی طرح بابا نانک (سکھوں کا پیشوا) بھی مسلمان تھے اور پوشیدہ ہوکر ہدایت کرتے تھے۔" (تذکرۃ الرشید، ج٢، ص٢٣٨)

**ترجمه:** "اکثر بزرګان ځان پټ ساتي او مخلوق د هدايت په لاره راولي، دغه شان بابانانك (د سِيکانو مشر) هم مسلمان وو او په پټه به ئې هدايت کولو."

هم دا ګنګوهی صاحب فرمائي چه:"مدرسۀ ديوبند د الله ده."

(ارواح ثلاثه، ص ٢٨١)

د اشرفعلی تهانوی د دې کتاب ارواحِ ثلاثه په صفحه ٣٨٣، ٣٨٤ کښې دي چه: "ناڅاپه ما اوليدل چه د آسمان نه يو تخت راکوزيږي او په هغې باندې جنابِ رسولُ الله ﷺ تشريف فرما دې او په څلورو ګوټونو ئې څلور خلفاء موجود دي، هغه تخت په راکوزيدو

راکوزیدو بالکل ما ته نِزدې راغې او په جُمات کښې کوز شو او آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ په څلورو خلفاؤ کښې یو ته اوفرمائیل چه ورروه لږ مولانا محمد قاسم (نانوتوی) را اوبله. هغه (خلیفه) تشریف یوړلو او مولانا (نانوتوی) ئې راوستلو. آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ ارشاد اوفرمائیل چه مولانا د مدرسه (دیوبند) حساب راوړه. (نانوتوی) عرض اوکړو، حضرت حاضر دې. دا ئې اووئیل او حساب ښودل ئې شروع کړل او د یوې یوې پائې حساب ئې ورکړو. د حضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د خوشحالئ هغه وخت څه حد نه وو، ډیر زیات خوشحاله شو او اوئې فرمائیل چه ښه مولانا، اوس (مونږ ته) اجازت دې؟ حضرت (نانوتوی) عرض اوکړو چه څنګه مو خوښه مبارکه وې، د هغې نه پس هغه تخت آسمان طرف ته اوچت شو او د نظر نه غائب شو.“

ګنګوهی صاحب خو مدرسه دیوبند ته د الله مدرسه اووئیله او تهانوی صاحب رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د دې مدرسې د حساب د کتلو د پاره د آسمان نه راتلل بیان کړل. د دې نه پس د دارالعلوم دیوبند د شاګردانو په باره کښې هم د دارالعلوم دیوبند اولنې صدر مدرس جناب محمد یعقوب یو ارشاد د تهانوی په ژبه واورئ. جناب محمد یعقوب فرمائې:

”زما سره الله تعالیٰ وعده کړې ده چه د دې مدرسهٔ (دیوبند) لوستونکې یو سړې به هُم د لسو روپو نه کم نه نوکر کیږي.“

(تھانوی صاحب کے پسندیدہ واقعات، ص۲۱٤، مصنف ابوالحسن اعظمی، مطبوعه دارالاشاعت، کراچی)

لږ د دیوبند د ښار په باره کښې هم واورئ، د جناب محمد انور کشمیری په حالاتو لیکلې شوې د عبدالرحمان کوندو کتاب "الانوار" (مطبوعه ندوةُ المُصنفین، دهلی، ۱۹۷۸ء) په صفحه ۲ کښې د ضیاء الرحمان ضیاء دا شعر موجود دې، فرمائي:

"اے خوشا دیوبند، جلوه زار حسن عالماں    مکّۂ ہندی، زیارت گاه ارباب دلاں"

**د شعر ترجمه:** اے د دیوبند باغه، د عالِمَانو د ښائست ځایه،

د هندوستان مکې، د ښو خلقو د لیدلو ځایه.

دیوبند ته ئې د الله مدرسه اووئیله او د حساب کتلو د پاره ئې رسولُ الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وآلِہٖ وَسَلَّمَ رااوغوښتلو، د شاګردانو د نوکرئ د پاره د الله نه وعده واخستې شوه او د دیوبند ښار ته ئې د هندوستان مکه اووئیله او د دې باوجود د دې دارالعلوم دیوبند د سل کلنیز جشن افتتاح او صدارت، د الله د دُښمنې مُشرکې ښځې (اندراګاندهی) په لاس اوکړې شوه، ښکاره ده چه د داسې تباهئ نتیجه دغسې غرق کیدل وي.

(واضحه دِ وي چه دې خادمِ اهلِ سنت، په خپل کتاب "**د دیوبند نه بریلی ته**" کښې د "حُضُور اقدس صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وآلِہٖ وَسَلَّمَ د علمائے دیوبند نه اردو زده کول"، د دیوبندیانو د روایت مطابق نقل کړي دي او دا ئې هم نقل کړي دي چه د وهابیانو دیوبندیانو د امام اسماعیل دهلوی بالاکوټی مطابق "نبی ته څه اختیار نشته" او دا هم چه "نبی ته د دیوال نه اخوا عِلم نشته" او دا هم چه "نبی مړ شو او په خاورو کښې ګډ شو" او دا هم چه "نبی ته د خپل

انجام څه خبر نشته.)“ (العیاذُ بِاللّٰه)

(3) عاشق اِلٰهی میرټهی صاحب چه کله د رشید احمد ګنګوهی سوانح عمري لیکله نو یو کس خوب لیدلي وو چه ”د رسولِ مقبول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ سوانح عمری لیکله کیږي“ او پخپله ګنګوهی سوانح نګار ته په خوب کښې راغې او اوئې وئیل چه ”آیا زما سوانح لیکې؟“

(تذکرة الرشید، ج۱، ص۸)

د دې کتاب په جلد دوم کښې په صفحه۱۲۸ او صفحه۱۵۲ کښې د ګنګوهي خوا ته اوسیدلواو ذِکر کولو والؤ ته ”اهلِ صُفَّه“ وئیل شوي دي.

(لوستونکي ته به ښه معلومه وي چه ”اهلِ صُفَّه یا اصحاب صُفَّه“ د حُضُورِ اکرَم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د یو څو خاصو صحابۀ کرامو ډلې ته وئیل کیږي.)

د هُم دې کتاب ج۲، په ص ۲۴۲ کښې دي:

”(ګنګوهی) یو ځل ارشاد اوفرمائیلو چه د ضامن علی جلال آبادی په سهارن پور کښې ډیرې رنډۍ مریدنې وې. یو ځل په سهارن پور کښې د یوې رنډۍ په کور کښې حصار شوې وو ټولې مریدنې د خپل میاں صاحب د دِیدار د پاره حاضري شوي وې خو یوه رنډۍ نه وه راغلې، میاں صاحب اووئیل چه فلانۍ ولې نه ده راغلې، رنډو جواب ورکړو: میاں صاحب مونږه هغې ته ډیر زیات اووئیل چه د میاں صاحب دِیدار له لاړه شه خو هغې اووئیل چه زه ډیره ګنهګاره یمه او ډیره زیاته مخ تورنه یمه، میاں صاحب ته خپل مخ څنګه اوښائم،

زه د هغه د دیدار قابله نه یم، میاں صاحب اووئیل، نه، تاسو هغه زما خوا ته ضرور حاضره کړئ، چنانچه رنده هغه راوستله، کله چه هغه مخامخ راغله نو میاں صاحب ترې تپوس اوکړو: "بي بي! ته ولې نه وې راغلې؟ هغې اووئیل: حضرت! د ګناهونو د زیات والي په وجه ستاسو مخې ته د راتلو نه شرمیدمه. میاں صاحب اووئیل: "بي بي! ته شرمیږې ولې، کولو والا څوك دې او په چا [ګناهونه] کولو والا څوك دې، هغه خو هُم هغه دې." رندۍ چه دا واوریدل نو اور پرې بل شو او خفه شوه او اوئې وئیل: لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ، اګرچه زه مخ تورنه او ګنهګاره یمه، خو د داسې پیر په مخ باندې متیازې هم نه کووم. "میاں صاحب خو اوشرمیدو او سر ئې ښکته کړو او هغه پاڅیده لاړه."

په هُم دې صفحه دي چه ګنګوهی هُم د دې ضامِن علی جلال آبادی په باره کښې په مُسکا مُسکا اووئیل چه: "ضامِن علی جلال آبادی خو صرف په توحید کښې غرق وو."

دا هم اوګورئ: "یو ځل په ډك مجلس کښې د حضرت (ګنګوهی) د یو تقریر په دوران کښې د کلي یو [بې تعلیمه] ځلمي بې اختیاره پوښتنه اوکړه چه حضرت جی د ښځې شرمګاه څنګه وي؟ یَره خو تعلیم ښه شې دې، ټولو حاضرو خلقو سرونه ښکته کړل خو هغه (ګنګوهی)

مطلق څه پرواه اونکړه بلکه بې اختياره ئې اوفرمائيل: "د غنم د دانې په شان." (تذکرة الرشيد، ج۲، ص۱۰۰)

صحابۂ کرام رضی اللہ تعالیٰ عنہم د رشيد احمد ګنګوهی په طريقه وو، چنانچه اوګورئ: "يوه ورځ په ډيره ګنړه کښې هغه (ګنګوهی) دا الفاظ اووئيل چه: "ورونړو يوه خبره کووم او اے الله ته ښه پوهيږې چه ولې ئې وائم...... هغه دا چه کومه زما طريقه ده بِعَينِهٖ [يعني بالکل رسا] دا د صحابه رضی اللہ تعالیٰ عنہم طريقه ده، په دې باندې ثابت قدم اوسئ او دا مه پريږدئ." (تذکرة الرشيد، ج۲، ص۳٤)

عاشق اِلٰهی ميرټهي د ذِکر شوو الفاظو په باره کښې فرمائي چه د ګنګوهی صاحب دا وئيل"د فخر د پاره نه وو بلکه حق ښکاره کول مقصد وو."

رسولُ الله صلی اللہ علیہ وآلہٖ وسلم صرف بشر او د خپل ځان په شان عام بشر ګنړلو والا ديوبنديان وهابيان خپل رشيد احمد ګنګوهی او نور مشران بشر نه ګنړي، چنانچه اوګورئ:

"هر هوښيار او پوهه کس که په شپه او ورځ ځلورويشتو ګينټو کښې څه وخت هم د هغه (ګنګوهی) په خدمت کښې حاضر شوې دې، هغه (د ګنګوهی) د ښه سيرت ستائنه کړې ده او بې اختياره ئې وئيلې دي چه "مَا هٰذَا بَشَراً اِنْ هٰذَا اِلَّا مَلَكٌ كَرِيمٌ" (دا هيڅ کله بشر نه دې دا خو معززه فرښته ده). (تذکرة الرشيد، ج۲، ص٦٠)

(لوستونکو ته به معلومه وي چه دا آيتِ قرآنی د حضرت يوسف عليه‌السلام په باره کښې دې او د دې پوره واقعه څه ده.)

نور اوګورئ: ”مولانا رفيع الدين فرمائيلي دي چه: ”زه پينځه ويشت کاله د حضرت مولانا (محمد قاسم) نانوتوی په خدمت کښې حاضر شوې يم او کله هم بې اودسه نه يم تلې. ما د انسانيت نه اوچته درَجه د هغه ليدلې ده. هغه کس (نانوتوی) يوه مقربه فرښته وه کومه چه په انسانانو کښې ظاهره کړې شوې وه.“ (ارواح ثلاثه، ص۲۲۰)

اوس د انسانيت نه د اوچتې درَجې والا نانوتوی صاحب لږ حال اوګورئ، هغه به روژه دار روژې ته نه پريښودو، بلکه په روژه ماتولو به ئې د ثواب زيرې ورکولو.

د هُم دې کتاب ارواحِ ثلاثه په صفحه ۲۹۸،۲۹۹ کښې دي: ”مولانا رفيع الدين صاحب به وئيل چه ما کله هم د حضرت نانوتوی خلاف نه دي کړي.يوه ورځ زه د چهته جمات ته حاضر شوم.حضرت (نانوتوی) په جمات کښې دننه سرې کړي چنې خوړلې. (نانوتوی) اوفرئيل چه راشه مولانا (اوخوره). ما (رفيع الدين) عرض اوکړو چه حضرت زما خو روژه ده. لږ ساعت پس ئې بيا اوفرمائيل چه راشه مولانا (اوخوره). زه (رفيع الدين) فوراً د خوراك د پاره کښيناستم، حالانکه د مازديګر نمونځ شوې وو،او د روژه ماتي وخت نِزدې وو. حضرت (نانوتوی) اووئيل: ”الله تعالٰی به د دې نه زيات ثواب تا ته درکړي څومره چه په روژه کښې

وو. چنانچه ما د (وخت نه مخکښ) روژه ماتولو نه پس څه داسې کیفیات او خوند محسوس کړو چه ما کله په روژه کښ نه دې لیدلې.“

د انسانیت نه د اوچتې درَجې معنٰی هم اوګورئ: د اشرفعلی تهانوي د مرتب شوي کتاب ارواحِ ثلاثه ص ۲۲۱ کښ دي: ”مولانااحمد حسین صاحب....ډیر معقولي وو او هیڅ څوك به ئې هم په دې میدان کښ خپل برابر نه ګنړلو. یوه ورځ حضرت نانوتوی وعظ کولو او اتفاقاً مخې ته ئې هغه (احمد حسین ناست) وو او مخاطَب جوړ شو او د (نانوتوی په وعظ کښ) د معقولاتو په مسائلو باندې رد شروع شو. د وعظ نه پس هغه (احمد حسین) اووئیل، اَللّٰهُ اَکبر دا خبرې (کومې چه نانوتوی اوکړې) د یو انسان په دِماغ کښ نه شي کیدې دا خو د الله خبرې دي.“

د هُم دې کتاب ارواحِ ثلاثه په صفحه ۲٤٦ کښ دي چه: ”مولانا (نانوتوی) به د ماشومانو سره ټوقې او خندا هم کوله او د مولانا محمد یعقوب صاحب ځوئ جلال الدین چه هغه وخت بالکل ماشوم وو، د هغه سره به ئې ډیرې زیاتې ټوقې او خندا کوله، کله به ئې ترې ټوپئ لرې کړه، کله به ئې ورله کمر بند [یعني پرتوغاښ] خلاص کړو.“

محترمو لوستونکو دا عبارت په ډیر غور سره اوګورئ: ځکه چه په دې تحریر کښ دیوبندی وهابی عالِم عبدالرزاق ملیح آبادی خپل حسین احمد مدَنی ته ”مجازًا خدا“ وئیلي دي. (واضحه ده چه دې خادمِ اهلِ سنت په دې عبارتونو باندې د خپلې رائے او د تبصرې کولو حق

محفوظ ساتلي دي.) الجمعية، د دهلی په ”شیخ الاسلام نمبر“ کښې عبدالرزاق ملیح آبادی لیکي: ”تاسو (دیوبندیانو وهابیانو) کله خدائے په خپلو کوڅو کښې په ګرځیدو لیدلې دې؟ کله مو خدائے د هغه د عرش عظمت جلال نه لاندې په فانی انسانانو کښې په عاجزئ کولو لیدلې دې؟ تاسو کله دا تَصَوُّر هُم کړې دې چه رَبُّ الْعٰلَمِین به په خپله کِبریائي باندې پرده اچولي وي او ستاسو کورونو ته به راځي؟ ستاسو سره به خبرې کوي؟ ستاسو خدمتونه به کوي؟ نه نه، هیڅ کله نه، نه داسې شوي دي او نه به اوشي. نو ولې بیا زه دیوانه یم څه یا مجذوب یم چه بې سوچه خبرې کووم؟ نه ورونړو! دا خبره نه ده. نه لیونې یم او نه سودائي یم. څه چه وائم، رښتیا دي، حق دي، خو د پوهیدلو لږه دوکه ده، د حقیقت او د مجاز فرق دې، د مَحَبَّت مُعامَله ده او په مَحَبَّت کښې د اشارو، کنایو نه کار اخستې کیږي. مَحَبَّت بې پرده رښتیا نه خوښوی. څه لږې بندې بندې، پټې پټې خبرې په مَحَبَّت کښې ښې وي.“ (پاکستانی ایډیشن، ص۱۱۳،مطبوعه مکتبه مدنیه، ګوجرانوالا)

۞ په اشرف العُلُوم سهارن پور بابت ماه جمادَین ۱۳۵٤ھ ص۳۲ کښې دي، چا: ”د شاه اسحاق صاحب په باره کښې تپوس اوکړو نو (تهانوی) اوونیل: په دې وخت کښې خو د انسانانو قِصَّه روانه ده، کله چه د فرښتو ذِکر وي نو د هغې سره د هغه (شاه اسحاق) متعلق تپوس کوه.“

او د ارواح ثلاثه په صفحه ٦٣ کښې دي: ”د مولانا اسحاق متعلق ئې اوفرمائيل چه الله تَعَالٰی د انسان په صورت کښې يوه فرښته راليږلي ده.“

د ارواح ثلاثه په صفحه ۱۲۱ کښې د سيد احمد بريلوی ارشاد دې چه: ”کوم طرف ته زه اوځم د هٰغه ځائ د وَنو او ځاروو پورې ما پيژني او سلام راته کوي.“

نور اوګورئ: ”دا (حسین احمد مدَنی) انسان دې يا يوه فرښته؟ نه نه زما ضِدی زړه دا هم نه مني چه د انوار قدسيه سرچشمه فرښته کيدې شي.“ (نذر عقیدت، ص۵)

د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف دِ اووائي چه د هغوئي حسين احمد مدَنی انسان هم نه وو او فرښته هم نه وه، نو بيا هغه څه وو؟ او دا دِ هم اووائي چه د ”انوارِ قُدسيه سرچشمه څه ته وائي؟“

ديوبنديان وهابيان تبليغيان دِ د خپل تهانوی په ژبه د خپل نانوتوی حال هُم اوګوري. په ”تحذيرالناس“ کښې نانوتوی د نبوت دروازه برسيره کړه او لاندې په دې عبارت کښې نانوتوی صاحب هغه الفاظ د خپل ځان د پاره وائي کوم چه حُضُورِ اکرَم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د خپل ځان د پاره فرمائيلي وو:

”فرمائي چه يو ځل مولانا ګنګوهی او مولانا نانوتوی حج بيت الله ته تشريف يوړلو. مولانا ګنګوهی خو پوره پوره انتظام کړې وو او مولانا نانوتوی بے پرواه وو، د يو ځائ څيز بل ځائ پروت دې او

هډو څه پرواه نه لري. هغه وخت یوه ډله د مولانا ګنګوهی خوا ته راغله چه مونږه هم ستاسو سره حج له ځو. هغه ورته اووئیل زادِ راه [یعني د لارې خرچه سامان] هم درسره شته دې؟ هغوئې اووئیل دغسې په تَوَکُّل روانیږو. مولانا (ګنګوهی) اووئیل کله چه مونږه د جهاز ټکټ اخلو نو تاسو د منیجر مخې ته د تَوَکُّل خلته کیږدئ. ډیر غټ راغلي ئې تَوَکُّل کوونکې، ځئ خپل کار کوئ. بیا هغه خلقو مولانا نانوتوی ته عرض اوکړو نو هغه اجازت ورکړو. ع

ہر گلے را رنگ و بوئے دیگر ست

**ترجمه**: د هر یو ګل رنګ او بوئې بدل بدل وي.

په لاره کښې چه څه مِلاویدل هغه ټول به (نانوتوی) هغه خلقو ته ورکول. نور ملګرو اووئیل چه حضرت تاسو خو ټول هر څه ورکوئ، څه خو د خپل ځان سره ساتئ نو اوئې فرمائیل: "اِنَّمَا اَنَا قَاسِمٌ وَاللّٰهُ يُعْطِیْ" [بیشکه زه تقسیمَوونکې یم او الله را عطا کوي] په دې سفر کښې مولانا ګنګوهی مولانا نانوتوی ته اوفرمائیل چه د سحر نه د ماښامه پورې روان ئې څه فِکر هم لرې که نه؟ نو (نانوتوی) اوفرمائیل چه حضرت ستاسو په موجودګئ ما ته د څه فِکر دې؟"

(ارواح ثلاثه، ص۲۷۰، ۲۷۱ مرتب اشرفعلی تهانوی)

تهانوی (په حواله د جناب محمد یعقوب، صدر مدرس دارالعلوم دیوبند) فرمائې: "په ځینو صفاتو کښې مونږه او حُضُور صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ یو شان یو."

(افاضات یومیه، ح۷، ص٤٦٤، مطبوعه اشرف المطابع، تهانه بهون، دسمبر ۱۹٤۱ء)

هُم دا تهانوی په افاضات یومیه، ح۱، ص۱۰۵ کښې فرمائي: کله چه د هغه پیر حاجی امدادالله مهاجر مکی وفات شو نو رشید احمد صاحب " ګنګوهی به د حضرت حاجی (امدادالله صاحب) متعلق بیا بیا "رَحۡمَةٌ لِّلۡعٰلَمِين" فرمائیلو."

د ارواح ثلاثه په صفحه۳۹۸ کښې اشرفعلی تهانوی د حاجی امداد الله صاحب په باره کښې هُم هغه الفاظ فرمائي کوم چه شاعر د رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ د خصوصیاتو د پاره وئیلي دي. تهانوی وائي:

"په دې موقع باندې مې د حضرت (حاجی امدادالله) د جامعیت په باره کښې زړه دا وئیل غواړی.

آں چہ خوباں ہمہ دارند تو تنہا داری"

**ترجمه**: کوم صفات چه په نورو انبیاؤ عَلَيْهِمُ السَّلَام کښې جدا جدا وو هغه ټول په تاسو کښې یواځې را جمع دي.

(لوستونکو ته به معلومه وي چه وړومبنۍ مصرع دا ده)

حُسنِ یوسف دَمِ عیسٰی ید بیضا داری

**ترجمه**: د یوسف عَلَيْهِ السَّلَام حُسن، د عیسٰی عَلَيْهِ السَّلَام دَم [یعني ړانده او برګي والا دَمول] د موسٰی عَلَيْهِ السَّلَام د لاس رنړا [کله به ئې چه د ترَخ مبارك نه لاس مبارك رااووِیستلو نو رنړا به ئې کوله] دا ټول صفات په نورو انبیاؤ عَلَيْهِمُ السَّلَام کښې جدا جدا وو او الله تعالٰی نبـی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ د دې ټولو صفاتو جامع جوړ کړي دي.

او دا شعر د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ په مدح کښې بیان شوي دي.

د تذکره مشائخ دیوبند په صفحه ۱۳۹ کښې دا مکمل شعر د ګنګوهی د پاره مفتی عزیزالرحمان لیکلې دې.

د هُم دې کتاب ارواح ثلاثه په صفحه ۳۷۷ کښې دي چه: "حاجی (امدادالله) صاحب د [خپل] وخت علی [یعني حضرتِ علي رضی الله تعالیٰ عنہ] وو، او حق د هغوئي تابع وو."

د هُم دې اشرفعلی تهانوی په وفات باندې عبدالمَاجِد دریا آبادي په خپل کتاب "حکیمُ الامَّت" په صفحه۵۹۵ کښې لیکي چه: "مونږه بدبخته (دیوبندیان وهابیان) د داسې نعمت لائق چرته وو؟ حیرانتیا په دې نه ده، چه دا نعمتِ عظمٰی (تهانوی) په خپل وخت باندې بیرته واخستې شو، حیرانتیا په دې ده چه د دومره ورځو پورې په مونږه کښې څنګه پاتې شوې وو.؟"

*تو بہار عالم دیگری زکجا بہ ایں چمن آمدی*

**ترجمه:** ته د بلې دُنیا سپرلې ئې، د دې دُنیا باغ ته څنګه راغلې وې.

دا مصرع وئیله شوه، او د تهانوی بدن مې په خپلو سترګو اولیدلو."

دا هُم هغه اشرفعلی تهانوی صاحب دې چا ته چه د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف او د دیوبندی وهابی ډلې منونکې، "مُتَّبِعِ سُنَّت، مجدد مِلَّت، حَکیمُ الأُمَّت او حُجَّةُ اللّٰهِ علی الارض" او معلومه نه ده نور څه څه وائي. هُم دا تش د نوم مُتَّبِعِ سُنَّت تهانوی صاحب، په اتباعِ سُنَّت کښې څنګه وو؟ پخپله فرمائي:

”زه په دروازه کښې په ولاړه ولاړه او په لاره کښې په روانه روانه د څه څيز د خوړلو نه پرهيز نه کووم که چرې اسلامي حکومت شي نو د زياتو نه زياته زما ګواهي به نه قبليږي.“

(افاضات يوميه، ج٤، ص٤١، مطبوعه اشرف المَطَابع، تهانه، بهون)

[نوټ: د فقه په کتاب ”مختصر القدوری“ کښې دي: ”کوم کس چه په ولاړه يا روانه خوراك کوي شرعاً د هغه ګواهي نه قبليږي]

فرمائي: (زه) په ”دعوت او هديه کښې حلال او حرام ته زيات نه ګورم ځکه چه زه متقي نه يم. بس کومه فتوٰی چه د فقهې په رڼړا کښې جائزه وي هغه جائزه ګڼړم“(کمالات اشرفيه، ص٣٦٩، مکتبه‌تهانوی، دفتر الابقاء، کراچی)

پخپله د دې اشرفعلی تهانوی صاحب خپل حال اوګورئ، فرمائي: ”يوه ورځ داسې اوشو چه ورور مې واړه بول کول، ما (تهانوی) د هغه په سر واړه بول کول شروع کړل.“ (افاضاتِ يوميه، ح٤، ص٢٧٤)

هم دا تهانوی صاحب فرمائي: ”د سيکری يو صاحب زما د ميرنئ مور ورور [يعني ما ما]، ډير زيات نيك او ساده سړې وو. والد صاحب هغه د ټيکې په کار لګولې وو. يو ځل د کمسَريټ نه په ګرمئ کښې اوږې تږې پريشانه کور ته راغې او د طعام په خوړلو کښې مشغول شو. د کور مخې ته بازار دې. ما (تهانوی) د سړك نه يو وړوکې ګُوترې [د سپي وړوکې بچې] رااونيوو او کور ته مې راوړو او د هغه د دالو په رکيبئ کښې مې کيښودو، غريب ډوډئ پريښوده او پاڅيدو او هيڅ ئې هم اُونه وئيل.“(افاضاتِ يوميه، ج٤، ص٢٧٣)

هم دا تهانوی صاحب فرمائي: ”زه (تهانوی) یو ځل په میرټهـ کښې نوچندی (د جینکو د ګډا او تماشې) کتلو له لاړم. د شیخ اِلٰهی بخش صاحب سره مې پلار نوکر وو، د میاں الٰهی بخش صاحب وراره شیخ غلام محی الدین زما نه تپوس اوکړو چه مولوی صاحب! نوچندی ته تلل څنګه دي؟ ما (تهانوی) اووئیل څوك چه مُقتدا جوړیږي، هغه له تلل جائز دي. ځکه چه که هغه څوك منع کوي او د هغه نه دا تپوس اوکړې شي چه په دې (بد کار) کښې څه بدي ده؟ نو په خپلو سترګو لیدلي هغه بدي به هغه په صحیح طریقه بیانولې شي. دا ئې چه واوریدل نو هغه (غلام محی الدین) ډیر زیات اوخندل چه ورروه! مولایان خلق که ګناه هم اوکړي نو د هغې نه هُم دِین جوړوي.“ (افاضاتِ یومیه، ج٥، ص٤٤٠)

تهانوی صاحب وائي: ”یو کس یوه زنانه راوستي وه او په یو کور کښې ئې ورسره مخ تورولو (یعنی زنا ئې کوله)، اتفاقاً نور مسافر هم راغلل ، هغوئي ته هم د اوسیدلو د پاره د کور ضرورت وو، هغه د هغه کور دروازه د دننه نه کونډه کړي وه، هغه خلقو ور اوډبولو نو هغه د دننه نه اووئیل چه ورروه دلته ځائ کوم دې، دلته خو پخپله انسان په انسان پروت دې. اوګورئ څنګه رښتینې سړې وو، دروغ ئې اُونه وئیل، څنګه هوښیار جواب ئې ورکړو.“ (افاضات یومیه، ج٤، ص٥٧٠)

د دیوبندي ډلې منونکي دِ لږ په توَجُّه سره د خپل ګُرو دا الفاظ

هم اوګوري: اشرفعلی تهانوی صاحب وائي:

"د عوامو د عقیدې بالکل داسې حالت دې لکه د خر د مخصوص عضو [یعني د ذَکَر]، چه په راوتلو شي نو هُم دغسې غټیږي او چه پټ شي نو بالکل ئې پته نه لګي." (افاضات یومیه ج٤، ص٧، مطبوعه اشرف المطابع، تهانه بهون، رساله المبلغ نمبر٦، ج٩ بابت ماه ربیع الاول ١٣٥٧ه)

د هُم دې تهانوی صاحب په باره کښې د اشرف السوانح مرتب کوونکې په ج١، ص٩٦ کښې فرمائي:

"آفاق ہا گردیدہ ام مہر بتاں ورزیدہ ام
بسیار خوباں دیدہ ام لیکن تو چیزے دیگری"

**د شعر ترجمه**: زه په ټوله دنیا کښې اوګرځیدم، نمر او سپوږمۍ مي اولیدل، ډیرې خوبۍ والا خلق مي اولیدل، خو ستاسو صفات او خوبۍ بل قسم دي.

په یو بل ځائ کښې تهانوي صاحب پخپله فرمائي:"د حضرت حاجی (امداد الله) صاحب عجیبه حالت وو." د دې جُملې نه پس (د هغه په ستائنه کښې) تهانوی د امیر خسرو هُم دا بره شعر نقل کړې دې.

(مقالات حکمت و مجادلات معدلت، ص٣٦٦، مطبوعه اداره تالیفات، اشرفیه، لاهور، ١٩٧٧ء)

او د تذکره مشائخ دیوبند په صفحه١٣٨ کښې دا شعر مفتی عزیز الرحمان د رشید احمد ګنګوهی د پاره نقل کړې دې.

(واضحه دِ وي چه دا شعر د امیر خسرو رَحۡمَةُاللهِ تَعَالٰی عَلَیۡه دې او هغوئي د چا د پاره وئیلې وو، لوستونکو ته به ضرور معلوم وي)[یعني هغوئي د نبی کریم ﷺ په مدح کښې وئیلې وو]

د دیوبندي ډلې د دې غټ مشر تهانوی د ګنده ذِهن حال پخپله د هغه د قلم لیکلې اوګورئ.

”یو ذاکر صالح ته کشف اوشو چه د احقر (یعني تهانوی) کور ته حضرت عائشه (رَضِیَ اللّٰہُ تعالیٰ عنْہا) راتلو والا ده. هغه ما ته اووئیل. زما ذِهن فوراً دې طرف ته لاړو چه کم عمره زنانه به په لاس راځي.“

(رساله الامداد، صفر ۱۳۳۵ھ)

د اشرف السوانح مرتب کوونکې خواجه عزیزالحسن په ج۲، صفحه۳۰ کښې فرمائی: ”یو ځل د عشق و محبت په جوش کښې د حضرت والا (تهانوی) نه ډېر زیات شرمیدم او د ډېره شرمه مې په رو رو عرض اوکړو چه حضرت یو ډېر بې هوده خیال مې په زړه کښې بیا بیا راځي، چه د هغې په ښکاره کولو ډېر زیات شرمیږم او جرأت هُم نه شم کولې. حضرت والا (تهانوی) هغه وخت د نمانځه د پاره د خپل ځائ نه پاڅیدلې وو او جمات ته دننه روان وو. (تهانوی) اوفرمائیل: اووایه اووایه. اَحقر د ډېره شرمه نه سر ښکته کړو او عرض ئې اوکړو چه زما په زړه کښې بیا بیا دا خیال راځي چه کاش زه ښځه وې او د حضور (تهانوی) په نکاح کښې وې. د دې محبت په ښکاره کولو باندې حضرت (تهانوی) ډېر زیات خوشحاله شو او بې اختیاره ئې اوخندل او په دې فرمائیلو فرمائیلو کښې جمات ته ننوتلو چه دا ستا محبت دې، ثواب به مومې، ثواب به مومې. ان شآءَ اللّٰه.“

د اشرف السوانح مرتب کوونکې فرمائي: ”په یوه عریضه کښې مې په ځائ د القابو او آدابو د ډیر محبت نه حضرت والا (تهانوی) ته صرف په دې شعر خطاب کړې وو:

جان من جانان من سلطان من اے توئی اسلام من ایمان من“

**ترجمه**: ته زما جانان ئې، ته زما سلطان ئې، ته زما اسلام ئې او ته زما اِیمان ئې. (اشرف السوانح، ج۲، ص۳۱، مطبوعه اداره تالیفات اشرفیه، ملتان ۱۹۸۵ء)

د اشرف السوانح مرتب کوونکي د کتاب په شروع کښې د ج۱ په صفحه ۸ کښې د تمهید په عنوان د خپل تحریر د پاسه دا شعر هم د تهانوی صاحب د پاره لیکلې دې:

”اے اشرف زمانہ زمانے مدد نما

درہائے بستہ را بہ کلید کرم کشا“[1]

**ترجمه**: اے په زمانه کښې د ټولو نه زیات بزرګه د زمانې مدد کوونکیه، ډیر په عاجزئ عرض کووم ته زما مشکل ختموونکې ئې.

”مُسْتَعِیْنًا بِالْمُخَاطَبِ قُلْتُهُ مُسْتَشِیْراً فِی التَّخَاطُبِ قُلْتُهُ“

**ترجمه مفهوم**: په وینا کښې هم ستاسو نه مدد غوښتل دي او په مشوره کښې

---

1 دا شعر د حضرت مخدوم سید اشرف جهانګیر سمنانی رَحۡمَۃُاللہِتعالٰیعَلَیۡه په باره کښې په سوونو کلونو مخکښې وئیلې شوې وو، او د دیوبندیانو وهابیانو د دې شعر په باره کښې فتوٰی ده چه دا مشرکانه شعر دې، دا به اووائیو چه دا شعر دیوبندیانو ته (شاید چه) د خپل تهانوی د پاره د لفظ ”اشرف“ په وجه خوښ شوې وو او د هغوئي وظیفه اوګرځیدو. اوس دِ دیوبندیان اووائي چه د دې شعر په باره کښې د هغوئي فتوٰی غلطه وه یا په دې شعر باندې موجوده عقیده او عمل غلط دې؟ د جواب انتظار به کووم.

هم ستاسو محتاجي ده

او د تهانوی صاحب د خانقاه په باره کښ ج۲، په صفحه۴۸ باندې د اشرف السوانح مرتب کوونکي دا شعر ليکلې دې:

"اگر فردوس بر روئے زمین است
ہمین است و ہمین است و ہمین است"

**ترجمه**: که فردوس [يعني جنت] په زمکه وې نو همين به وو همين به وو همين وو [يعني د تهانوی کور به جنت وې.]

د ديوبنديانو وهابيانو امام اسماعيل دهلوی خو په تقوية الايمان کښ د نسبت په سبب د چا تعظيم کول شِرك گڼړي او ديوبنديانو وهابيانو مُلايان د خپلو مشرانو سره د نسبت په وجه څنګه او څومره مبالَغه او تعظيم روا ګڼړي، د دې احوال هم اوګورئ: "(جناب احمد حسن امروهی) يو ځل د مولانا (تهانوی) په خدمت کښ حاضر شو، نيمه شپه ورته د استنجا ضرورت پيښ شو، د شپې په شروع کښ ورته پوښتنه کول ياد نه وو، پس د خدائے قدرت چه مولانا (تهانوی) پخپله د دننه نه تشريف راوړو. (او تپوس ئې اوکړو) چه څه حاجت شته؟ ما (امروهی) ورته اووئيل آو. مولانا (تهانوی) اووئيل چه په دې وخت کښ به دواړو ته تکليف نه کيږي، دننه د زنانۀ کور ته لاړ شه او پخپله (تهانوی) د استنجا د پاره لُوټې او اوبه ايښودي وې. ما (امروهی) اووئيل دا خو "آب زم زم" دي اوس به استنجا په څه کووم! الله اکبر، څه

اخلاق دي." (قصص الاکابِر، ص۲۰٦، بحواله حسن العزیز، ج۲، ص۲۲۰)

۞ محترمو لوستونڪو! د دې عبارتونو د نقل کولو په وخت کښې چه دا خادمِ اهلِ سُنَّت د خپل ایماني غیرت په وجه کوم درد او تکلیف محسوسوي هغه د بیانولو نه بَهَر دې. زه ډېر حیران هم یم او ډېر زیات افسوس هم کووم، چه د دیوبندیانو وهابیانو د ډلې منونڪي د دې ګستاخانه او ګنده عبارتونو لیکلو والا دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو مُلایانو ته خپل پیشوایان او رهنما هم وائي او د هغوئي تقلید او پیروئ ته د قرآن و سنت نه زیات اهمیت هُم ورکوي. عقل او شعور لرونڪې هر کس چه دغه عبارتونه اولولي نو بیشکه دا به وائي چه داسې ګنده عبارتونه لیکونڪي مُلایان هیڅ کله د علمائے حق ګڼرلو حقدار نه دي، بلکه دا خلق د عالَمِ اسلام او مسلمانانو د پاره د شرم او افسوس باعث دي.

نور اوګورئ:

۞ انبیاء او اولیاء بے اختیاره او د خپل انجام نه بے خبره ګڼرلو والا دیوبندیان وهابیان د خپل ګنګوهی د پاره څه وائي؟ اوګورئ:

"هغوئي (یعني ګنګوهی) د آخرت د همیشه نعمتونو په خرڄ کولو کښې بالکل بخِیل نه وو، که هغه بُخل کولې نو نن به د هغه د مریدانو ډله زرګاؤ ته ولې رسیدلې؟" (تذکرة الرشید، ج۲، ص۸۸)

د تهانوی صاحب اختیار اوګورئ:

تهانوی فرمائي: ”چه د لندن نه یو انګریز سوال کړې وو، هغه سره د خپلې ښځې مسلمان شوې وو، چه مونږه هندوستان ته درتلل غواړو او زما ښځه به هم زما سره وي او هغه به پرده نه کوي.....ما (تهانوی) هغه ته اولیکل چه ستاسو د پاره اجازت دې.“ (افاضاتِ یومیه، ج٦، ص٢٤٥)

هُم دا اشرفعلی تهانوی د خپل دیوبندی وهابی عالم مظفر حسین کاندهلوی په باره کښې لیکي چه ”په جلال آباد یا شاملی کښې یو خان صاحب اووئیل چه زه اودس نه شم کولې او دوه بَد عادتونه (شراب او زنا) نه شم پریښودلې. هغوئي ورته اوفرمائیل چه (نمونځ) بې اودسه کوه او شراب هم څښه.“ (ارواح ثلاثه، ص١٨١)

انبیاء معصوم نه منلو والا دیوبندیان د خپل ګنګوهی هر عادت عبادت ګڼړي، تر دې پورې چه غټ او واړه بول ئې هم. اوګورئ:

”خلاصه دا ده چه د اهلُ الله عادتونه بیشکه په عبادتونو کښې داخل دي او د دې حضراتو د سحر نه واخله د ماښامه پورې خوب، بیداري، خوړل څښل، واړه او غټ بول کول، خاموشی او خبرې کول، آرام او محنت، حرکت او آرام کول وغیره ټول افعال د عبادت د ذریعې په وجه په طاعت کښې داخل دي او حضرت امام ربانی (ګنګوهی) په دې صدئ کښې د خپلې زمانې د پاك باز جماعت پیشوا او سردار وو، په دې وجه د هغوئي عادتونه عبادتونه کیدل خو د نمر د سترګې نه زیات روښانه دي.“ (تذکرةُالرشید، ج٢، ص٦١)

﷽ د ګنګوهي صاحب نه پس لږ د ديوبنديانو د مشهور عالم اشرفعلي تهانوي صاحب حال هم اوګورئ. د تهانوي تحريرونه د جنسي تعلق او د بې حيا خبرو نه ډك دي. اوګورئ، هغه پخپله وائي:

"د طبيبانو او فلاسفؤ په دې خبره باندې اتفاق دې چه د کوم قُوَّت نه کار وا نخستې شي هغه په قلاره قلاره ختميږي، لکه جِماع پريښودل، د عاجزئ سبب جوړيږي." (کمالات اشرفيه، ص۸۰)

د افاضاتِ يوميه، ج٤ په صفحه٦٦٨ (مطبوعه اشرف المَطابع، تهانه بهون) کښې د تهانوي د جنسي رغبت حال اوګورئ.

"يو کس ما (تهانوي) ته اووئيل چه (د الله) ذِکر خوند نه راکوي، ما ورته اووئيل چه مزه په ذِکر کښې چرته ده، مزه خو په مذی کښې وي کوم چه د خپلې ښځې سره د ملاعبت (يعني چيړ چاړ کولو) په وخت کښې خارجيږي. په دغې کښې (يعني د الله په ذِکر کښې) څه مزه ګورې."

د تهانوي صاحب د هُم دې کتاب په صفحه ۲۷۳ کښې د تهانوي د ګنده ذهن يو بل ثبوت اوګورئ، په خبره باندې د پوهه کولو د دې نه زيات "ښه انداز" د ديوبنديانو وهابيانو د حکيم الامت نه سِوا د بل د چا کيدې شي؟ اشر فعلي وائي:

"پس اصل چيز هغه دې وحي او که صرف د عقل تقاضا وي[1] نو دا هم دي څنګه چه يو کس وئيلي وو، هغه به د خپلې مور سره بدکاري

1 يعني داسې کول عقلًا صحيح دي.

کوله، چا ورته اووئيل: اے خبيثه دا څه حرکت دې؟ نو وئيل ئې چه کله خو زه پوره په دې کښې دننه ووم نو که زما يو جُز په دې کښې دننه لاړو نو څه باك دې؟ [نو اشر فعلي وائي چه] دا حکم خو هم د عقلياتو نه کيدې شي."

(ياد ساتئ چه د ديوبنديانو وهابيانو د ډلې مجدد اشرفعلی تهانوی د مسلمانانو د کورونو شرم و حيا والا بې واده او واده شوي زنانؤ ته د بې شرمئ او د بې حيائې زده کولو د پاره په خپل مشهور کتاب "بهشتي زيور" کښې د جنسي تعلقاتو(sex) کومې طريقې او نسخې ښودلې دي، د هغې نه په ډيره آسانئ د تهانوی د شهوت پرستئ1 او د جنسي خواهش نه ډك ذهن اندازه

---

1 محترمو لوستونکو! کيدې شي چه تاسو به د تهانوی صاحب د شهوت پرستئ او جنسي ميلان په تذکره باندې حيران شوي ئې. خو د دې نه زياته حيرانتيا او افسوس په دې خبره دې چه په دسمبر ۱۹۸۸ء کښې د ديوبنديانو وهابيانو د مدرسه عربيه اسلاميه، آزادول، (جنوبي افريقا) نه يوه رساله "النصيحة" شائع شوي وه، چه د هغې متن د بنياد جوړلو په وجه نامه نګار جےنټ بےنټ د جنوبي افريقا د مشهور اخبار هيرلډ سنډے ټريبون د ۱۱ دسمبر ۱۹۸۸ء په اشاعت کښې د رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ په باره کښې کوم ګستاخانه عبارت ليکلې وو، د هغې نقل کول زما د پاره مشکل دي. د لوستونکو د معلوماتو د پاره به صرف دومره عرض اوکړم چه د زمانې د ټولو نه غټ بدنام د ملعون شيطان رشدي کتاب د "شيطاني آيات" د ځينو جملو نه د "النصيحة" هغه جملې ډيرې زياتې خرابې وې. دا خادمِ اهل سنت په جنوبي افريقا کښې د ديوبنديانو غټ مرکز "ميازفام" ته ځځپله لاړو او علمائے ديوبند ته ئې په دې سلسله کښې احتجاج اوکړو او هغوئي ته ئې اووئيل چه هغوئي دِ د خپل مسلك د دې شيطان عالم د غلطو کارونو نوټس واخلي، خو افسوس چه د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ په

کيږي. وائي چه د تهانوی دې کتاب ”بهشتي زيور“ د سوونو کورونو د جينکو بې حيائۍ او بدکارئ ته مخه کړي ده، هُم دا وجه ده چه ځان ته ديوبنديان وهابيان وئيلو والا ډير خلق خپلې لونړه او ښځې د بې حيائۍ نه د بچ کولو د پاره د تهانوی صاحب دا کتاب په خپلو کورونو کښې ايښودل نه خوښوي)

۞ د دې کتاب افاضاتِ يوميه، ج٤، ص٧١٣ کښې د بيان او عمل په فرق د پوهه کولو د پاره د ديوبنديانو وهابيانو د امام (تهانوی) د جنسي رجحان او خواهش يو بل ثبوت اوګورئ. فرمائي: ”د مکتب هلکانو حافظ جی [ړوند استاذ] ته د نکاح کولو ترغيب ورکړو چه حافظ جی نکاح اوکړه ډيره مزه وي پکښې، حافظ جی په ډير کوشش نکاح اوکړه او ټوله شپه ئې ورپورې ډوډئ راښکله او اوخوړله خو مزه ئې اونکړه. سحر ئې د هلکانو نه خفګان ظاهر کړو او وئيل ئې دوئي راته وئيلي وو چه ډيره مزه کوي، ډيره مزه کوي. ما ورپورې (يعني په ښځه پورې) ډوډئ راښکله او اومې خوړله، په ما خو نه مالګينه اولګيده، نه خوږه او نه ترَخه. نو هلکانو ورته اووئيل چه حافظ جی ”خلق ئې وهي.“ شپه راغله حافظ جی هغه غريبه زنانه ډيره زياته اووهله، په خپلو ئې پرې راکيښودل، ټوله محله پرې رابيداره شوه او

---

ګستاخئ باندې د هغه علمائے ديوبند غيرت په جوش کښې رانغلو، خو دومره ضرور اوشو چه زما خلاف د مياز فام د علمائے ديوبند د طرف نه پوسټر شائع شو. دا خادمِ اهل سنت عرض کوي چه په چا تهمت لګول، د مسلمانانو طريقه نه ده. د دې خادم اهل سنت سره ټول کاغذونه او ريکارډ محفوظ دې.

خلق را جمع شو او حافظ جی ته ئې ډېر رد بد اووئیل. بیا سحر راغې او اوئې وئیل چه هلکانو ډېر تکلیف راکړو، د شپې ما هُم اووَهله، خو هیڅ مزه ئې اونکړه او رسوا هم شوم، بیا ورته هلکانو ښکاره حقیقت بیان کړو چه د ”وهلو“ نه دا مراد دې. بیا چه شپه راغله نو حافظ جي په حقیقت پوهه شو، چه سحر شو او راغې نو د بریتو یو یو ویښته ئې څلیدو او ډېر خوشحاله وو. نو حضرت! د ځینو کارونو حقیقت په کولو معلومیږي.“

[بله واورئ] د یو څیز نه د زړه توریدو داسې مثال ورکول هم صرف د وهابي ډلې د حکیم الامت صاحب کار دې، فرمائي: ”یو حافظ جی ړوند وو، ډېر زیات حِرص ناك وو، هغه چرې اوریدلي وو چه خدائے تعالیٰ په جنت کښې د مومِنانو د پاره حورې پیدا کړې دي. بس هر وخت به (هغه حافظ جی) دُعا کوله چه اے الله حورې رااولیږه، حورې رااولیږه. بازارې ښځې ډېرې شرارتي وي، چرې هغوئي اوریدلي وو. (هغه ټولو ښځو) په خپل مینځ کښې مشوره اوکړه چه راځئ چه حافِظ جي د حُورو نه توبه ګار کړو، هغه ټولې په جمع راغلې، هغه (یعني حافظ جی) چه ښکالو [یعنی کشا] واوریده نو تپوس ئې اوکړو چه څوك ئې؟ (یوې ښځې) اووئیل چه: حوره یم! (حافظ جی) ډېر خوشحاله شو چه ډېرې ورځې پس مې دُعا قبوله شوه. خیر مخ ئې ورسره تور کړو.

دویمه (ښځه) راغله، حافظ جي تپوس اوکړو څوك؟ (هغه ښځې) اووئیل: حوره یم! وئیل ئې رازه بیا سهي، د هغې سره ئې هم مخ تور کړو، غرض (هغه) ډیرې وې. د ده (یعني حافظ جی) هم د ډیرو کلونو جوش وو. آخر تر څو پورې! هغه نور ختم شو، نو بله (ښځه) راغله، تپوس ئې اوکړو څوك؟ (ښځې) اووئیل: حوره یم! (حافظ جی) په کنزلو شروع اوکړه او وئیل ئې چه ټولې حورې زما په قسمت کښې راغلې؟ پس حضرت، څنګه چه هغه (حافظ جی) د حورو نه یَریدلې وو دغه شان تاسو د نور نه یَریږئ.“

(خطبات حکیم الامت، حصه١٦، ص٢٤٨، برکات رمضان، مطبوعه ادارہ تالیفات اشرفیه، ملتان)

د حقیقت او معرفت د وعظ د فرمائش پوره کولو داسې شرط هم صرف د وهابي ډلې مُلایان ایښودې شي. د یوبندیانو وهابیانو د ”مجدد“ تهانوي صاحب یو بل لِیك اوګورئ:

تهانوی صاحب د خپل حیدرآبادي ماما ذِکر کوي، فرمائي چه ”عبدالرحمٰن خان صاحب، مالك مطبع نظامی هم د هغوئي (یعني د تهانوی د ماما) سره ملاقات له راغلې وو، او د هغوئي د خُلې نه ئې چه حقائق او معارف واوریدل نو د هغوئي ډیر عقیدتمند شوو. عرض ئې اوکړو چه حضرت (تاسو) په وعظ (کښې د حقیقت او معرفت بیان) اوکړئ چه ټول مسلمانان ترې فائِده واخلي. (د تهانوی) ماما صاحب د هغې عجیبه آزادانه او بې شرمانه جواب ورکړو. اوئې

وئیل: چه خان صاحب! زه او وعظ

صلاح کار کجاؤ من خراب کجا

(چرته د نیکئ کار او چرته زه بدکاره)

بیا کله چه (خان صاحب) ډیره زاري اوکړه نو اوئې وئیل، چه آو په یوه طریقه (وعظ) کولې شم، د هغې انتظام اوکړه. عبدالرحمان صاحب غریب ساده سپین ګیرې وو. (هغه) سوچ اوکړو چه داسې به کومه طریقه وي چه د هغې انتظام نه شي کیدې. دا ئې چه واوریدل نو په ډیر شوق ئې تپوس اوکړو چه حضرت هغه خاص طریقه څه ده؟ (د تهانوی) ماما اووئیل [هغه دا ده] چه زه بالکل بربنډ شم او بازار ته اوځم، داسې چه یو کس زما عضو تناسل نیولې وي او راښکاږي ئې او دویم کس د شانه (په مقعد کښ) ګوته راکوي، او ورسره د هلکانو یو ټولې وي او هغوئې دا شور کوي، چه بړوا دې بړوا. بړوا دې بړوا. او هغه وخت زه حقیقت او معرفت بیان کړم."

(الافاضات یومیه، ج۷، ص۸۲، ۸۳، مطبوعه اشرف المَطابع، تهانه بهون، دسمبر ۱۹٤۱ء)

تهانوی صاحب لیکي چه: زه د خپل دې ماما د زړه نه عقیدتمند ووم. (ص۸٤)

"د رسول صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَآلِہٖ وَسَلَّمَ په غوښتلو هیڅ نه کیږي." د دې عقیدې لرونکو دیوبندیانو وهابیانو د خپل تهانوی په باره کښ عقیده اوکوړئ. دیوبندی عالم عبدالمَاجد دریابادی فرمائي: "اللّٰه هُم هغه

اوغوښتل کوم چه د هغه يو مقبول بنده (تهانوی) غوښتلي وو.“

(حکيمُ الامت، ص٤٧)

ډير په توَجُّه سره اولوَلئ، هُم دا عبدالمَاجد دريابادی، اشرفعلی تهانوی صاحب ته په خپل خط کښې ليکي:

”بل پرون شپه په کور کښې بيګم (د دريابادی بي بي) يو عجيبه خوب ليدلې وو. څه ګوري چه د مدينهٔ منوره په مسجد قُبا کښې حاضره يم. هلته د جناب (تهانوی) وړوکي بي بي صاحبه هم ده. دا ئي چه اوليدله نو ډيره خوشحاله شوه. هغې (د تهانوی بي بي) ترې تپوس اوکړو: د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ تصوير ګورې؟ هغې (د دريابادی بي بي) په ډير شوق اووئيل: ضرور. په دې کښې چا اووئيل چه دا خو عائشه صديقه (رَضِيَ اللّٰهُ تعالىٰ عَنْهَا) ده. اوس دا (د دريابادی بي بي) په ډير غور او حيرانتيا سره هغې ته ګوري چه په شکل و صورت، بدن او لِباس کښې خو (د تهانوی) وړوکي بي بي ده. دا حضرت صديقه څنګه کيدې شي؟ په دې کښې بيا چا اووئيل چه نه، دا (د تهانوی بي بي) د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ هِنګور ده. اوس دا په خپل زړه کښې نوره هم حيرانه شوه چه د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ خو يو صاحبزاده هُم نه وو، نو هِنګور ئي څنګه شوه؟ په دې کښې بيا آواز راغې چه هر کلمه وئيونکې د حضور (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ) اولاد دې، او د مولانا اشرفعلی په شان بُزُرګ خو خاص الخاص د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمْ اولاد دې، نو د هغه (تهانوی)

بي بي د حضور هنګور شوه. د هغې نه پس وړوکي بي بي صاحبې زه د ځان سره د جمات د انګڼ نه د جمات دننه درجې ته بوتلم. هلته يوه دروازه شان بيرته شوه، او په هغې کښې دننه مو د تصوير په ځائ ښځپله د حُضُور (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمۡ) نظاره مبارکه اوکړه." (حکیمُ الامت، ص۵٤۸، ۵٤۹)

**محترمو لوستونکو!** ذِکر کړې شوي يو څو عبارتونه مې د غټو غټو ديوبنديانو وهابيانو علماؤ د اصليت ښکاره کولو د پاره د هغوئي د کتابونو نه چه څنګه وو هُم هغه شان پيش کړل. دا خادمِ اهلِ سُنَّت په دې عبارتونو باندې د "جوہانس برگ سے بریلی" د مصنف په شان څه تبصره نه ليکي او نه پرې د "جوہانس برگ سے بریلی" د مصنف نه څه وضاحت غواړي. ځکه چه ښکاره خبره ده چه په ګندګئ باندې د تبصرې او وضاحت کولو سره په ګندګئ کښې نوره اضافه کيږي. ګنده عبارتونه ليکل او د هغې د بې حيا وضاحتونو او فاسِد تاويلونو کولو دا ګنده شوق او خواهش د ديوبنديانو وهابيانو سره ښائي. کيدې شي چه د ګنګوهی او تهانوی سره د عبادت د حده پوري محبت کوونکې د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف او د هغه ملګري ټول ديوبنديان وهابيان تبليغيان د خپل ګنګوهي او تهانوی د ذِکر شوو عبارتونو ګندګي د ټولې دُنيا صفائي ثابتول اوغواړي، يا دا ګنده عبارتونه د قرآني آياتو يا احاديثو په شان د مقدَّس ګرځولو کوشش اوکړي، او دا اووائي چه دا ګنده مثالونه وغيره هم ښه دي او د ښو

خبرو پوهه کولو د پاره لیکلي شوي دي، نو د دې په جواب کښې د دې دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو په خدمت کښې عرض دې چه جناب! غلطه خبره بهرحال غلطه وي. که ستاسو مشر غلطه او ګنده خبره اولیکي، نو تاسو هغه غلطې ته هم صحیح او ګندګۍ ته هم پاکي وائې، صرف په دې وجه چه هغه ستاسو د خپلو [مشرانو] وئیلې شوي او لیکلې شوي وي او که چرې بل څوك صحیح خبره اولیکي نو د هغه صحیح خبرې نه تاسو غلطه ولې جوړوئ؟ آیا ستاسو سره د دې څه معقول جواب شته؟ نو بیا دا اُومنئ چه ستاسو د رښتیاؤ سره، د حق سره، او مونږ اهلِ حق سره فالتو دښمني ده، بُغض دې او تاسو صرف عیبونه بیانوئ او که څه عیب درته ښکاره نه شي، نو بیا ښه خبره عیب ګرځول دِ خلق ستاسو نه زده کړي!

د اشرف السوانح، ج۲، په صفحه۵٦ کښې ستاسو د اشرفعلی تهانوی صاحب ارشاد دې چه "محبت کوونکي ته (د محبوب) عیب هم هُنر ښکاري او دښمن ته د دښمن هُنر هم عیب ښکاري."

تاسو دیوبندیانو وهابیانو خو د الله د پاره عیب ممکن کړې او ثابت کړې دې، د الله عَزَّوَجَلَّ د بې عیبه رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ زرګاؤ صفاتو ته مو عیب وئیلې دې، نو په مونږه صحیح العقیده سُنیانو پورې ستاسو (دیوبندیانو وهابیانو) له طرفه زیاته او سپکه وینا کول څه خبره ده؟

اے د ”جوہانس برگ سے بریلی“ لیکونکیه او د دیوبندئ وهابئ ډلي ملګرو!

ما ګنهګار ته چه څه وائي اووائي، خو د اللّٰه عَزَّوَجَلَّ خوږ رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمَ، د رسولُ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمَ بيبيانو او اولاد او صحابه کرامو په شان کښې هيڅ قِسمه بې ادبي مه کوئ، د اللّٰه ګران بندګان مه ناراضه کوئ، که تاسو د هغوئي ادب نه شئ کولې نو د هغوئي د بې ادبئ نه خو ځان بچ ساتلې شئ. که تاسو د هغوئي شان نه شئ بيانولې نو د هغوئي د مرتبې او مقام خلاف خبرو کولو په ځائ خاموشه خو پاتې کيدې شئ. تاسو که د رسالت مآب صَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَالِهٖ وَسَلَّم تعظيم نه شئ کولې نو تاسو څوك د هغې د پاره نه مجبوروي، خو کوم خلق چه د اللّٰه په حکم د اللّٰه د ګرانو بندګانو تعظيم کوي، هغوئي ته تاسو غلط او بد ولې وائې؟ کيدې شي چه ستاسو د اللّٰه خوږ او بې عيبه رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمَ خوښ نه وي. څومره عجيبه خبره ده چه تاسو د کوم نبـی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمَ کلمه لولئ او ځان ته مومِنان وائې، تاسو د هغه نبـی د تعظيم او تکريم سره څه شوق نشته.

مونږه صحيح العقيده اهل سنت و جماعت د خپل معبودِ حقيقي اللّٰه تعالٰی د پاك کلام د هر يو آيت نه، د اللّٰه تعالٰی د خوږ رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمَ شان بيانوو، او تاسو د دې پاك کلام قرآن کريم نه د خپلې رائے مطابق د اللّٰه د خوږ رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وآلِهٖ وَسَلَّمَ د شان کمولو کوشش کوئ.

مونږه سُنیان د عظمت او شانِ رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ عاشقان یو او تاسو دیوبندیان وهابیان تبلیغیان په شانِ رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ کښې ګستاخي او بې ادبي کوئ. مونږه سُنیان د الله د خوږ نبــی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ د صِفاتو معلومولو شوقیان یو، او تاسو دیوبندیان وهابیان تبلیغیان د الله د خوږ او بې عیبه نبــی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ د پاره د عیبونو لټولو په کوشش کښې لګیا ئې..... تاسو پخپله فیصله اوکړئ چه د چا وخت ښه تیرېږي؟ کیدې شي ستاسو به یو ښه څیز هُم خوښ نه وي، ځکه چه تاسو عیب ناکه ئې، بد باطنه ئې.

د ''جوہانس برگ سے بریلی'' مصنف او د هغه ملګري به غالباً په دې پوهیږي چه په یو بې عیبه باندې الزام لګول بهتان دې، هغوئې د خپل عالِم په دې باره کښې فتوٰی په دې کتاب کښې کتلي ده. دا ټول دیوبندیان وهابیان تبلیغیان دِ د خپل مشر تهانوی صاحب یوه مشوره په ډیره تَوَجُّه سره اوګوري. تهانوی صاحب په خپل کتاب افاضاتِ یومیه ج٤، ص٧٤٢ کښې خپلو ''عقیدتمندو'' ته نصیحت کوي چه خپل نقص [عیبونه] خو نه وینئ، او د نورو نقص [یعني عیبونه] را اُوباسئ، هغه د پوهه کولو د پاره یو حکایت لیکي. فرمائي:

''د یو بُزُرګ په خِدمت کښې یو طالب حاضر شو، د بُزُرګ مخ ئې چه اولیدلو نو حیران اودریدو. بُزُرګ ترې پوښتنه اوکړه چه ولې څه خبره ده، اوئې وئیل چه حضرت جي د کور نه خو عقیدتمند

راروان شوې ووم خو دلته راته داسې عجیبه نقشه ښکاره شوه چه هغه په ژبه نه شم عرض کولې، اوئې فرمائیل چه نه په بیانولو کښې څه باك نشته. عرض ئې اوکړو چه د جناب شکل د سپي په شان ښکاري. بزُرگ بد اُونه گنړل. اوئې فرمائیل آو ښکاري به، داسې هم کیدې شي. ته د الله نوم اولوله. هغه اولوستو، بیا ئې ترې تپوس اوکړو چه اوس درته څنگه ښکاري؟ عرض ئې اوکړو د پیشو په شان. اوئې فرمائیل چه هم دا [د الله] نوم یوه هفته نور اولوله، د هغې [یعني د یوې هفتې] نه پس ورته د انسان په شان ښکاره شو. اوئې فرمائیل چه هغه ستا خپل شکل وو کوم چه درته په دې آئینه کښې ښکاره شوې وو پس هغه ناقِص شکل، خپل شکل وي. د دې نه علاوه کله کله د سختي کولو ضرورت هم وي، مثلاً که یو کس کوهي ته لویدل غواړي او بس ټوپ کولو ته نزدې وي، نو آیا هغه وخت به هغه په نرمئ پوهه کول غواړي، یا به د لاسه نیول غواړي او په زور به را لرې کول غواړي، چه دا څه کوې، آیا ځان وژنې؟" د دیوبندیانو وهابیانو تبلیغیانو د ډلې مُبَلِّغین او مرسته کوونکي به ښه پوهه شوي وي چه دا دیوبندیان وهابیان مونږه رښتیني مسلمانانو ته بد وائي نو دا دیوبندیان د خپل تهانوی صاحب مطابق په اصل کښې په آئینه کښې خپل بد شکله مخ ویني. نور اوگورئ.

په اشرف السوانح، ج۲، ص۶۰ کښې د تهانوی صاحب ارشاد دې

چه: ”هر کس د ښك سلوك حقدار نه وي. خلق وائي چه سختي مه کوئ، آخر څنګه سختي اُونکړم، چه د سختئ نه بغير ئې هډو اصلاح نه کيږي. اوس اوګورئ، د لسو دولسو کالو خوش اخلاقئ خو د هغوئي څه اصلاح اُونکړه، بلکه نور ئې ورله دماغ سخا کړل او د لسو دولسو مِنتو رټولو ورله پوره اصلاح اوکړه، دماغ ئې صحيح شو او خناس [يعني شيطان] ترې اووتلو.“ نور فرمائي چه: ”که رواجي اخلاق په مصلحت باندې غالب اوساتلې شي نو د دې معنٰى دا ده چه بس خلق دِ ټول عُمر په جَهل کښې اخته پريښودلې شي.“ (ص٦١)

د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف او ټولو ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو ته عرض دې چه بې ځايه ضِد، حسد او دُښمني پريږدئ او په خوشحاله زړه د حق طلب کولو د پاره په ديانتدارئ د امام اهلِ سُنَّت اعلٰى حضرت مولانا شاه اِمام احمد رضا خان بريلوى رحمۃ اللہ تعالٰی عليه سيرت او تعليمات او د هغوئي د زړو نه زيات تصنيفات اوګورئ. صرف د فتاوٰى رَضَوِيَّه د غټ سائز دولس [او تخريج شُده دوه ديرش] جلدونه اوګورئ چه د هغې مثال به په پوره ديوبند کښې پيدا نه شي. يقيناً د دې کتابونو د مطالَعې نه پس به درته د اعلٰى حضرت بريلوى رحمۃ اللہ تعالٰی عليه په باره کښې صحيح اندازه اوشي. او ستاسو ضمير به هم ګواهي ورکوي چه اعلٰى حضرت مولانا شاه احمد رضا خان بريلوى رحمۃ اللہ تعالٰی عليه بيشکه د دِينِ حق مُجَدِّد، د شريعت و سنت پابند، د

ستائني لائق، عالم رَبّانی او رښتينې عاشقِ رسول وو. د عرب او عجم غټو غټو علماؤ او پخپله علمائے دیوبند د اعلیٰ حضرت بریلوی رَحمَةُ اللهِ تعالیٰ عَلَیه د علمي وُسعت او عشقِ رسول صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ اعتراف کړې دې. د جنوبي افریقې او نورو ټولو دیوبندیانو تبلیغیانو وهابیانو علماؤ ته هم پکار دي چه هغوئي په بې ځایه اعتراضونو کښې خپل ځان تباه نه کړي، بلکه دا حقیقت دِ اومني چه صرف مونږه اهلِ سنت وجماعت (سُنیان) (چا ته چه تاسو بریلویان وائې) د قرآن و سُنَّت رښتیني پابند او عمل کوونکي یو او زمونږه عقائد او اعمال صحیح کیدل پخپله د دیوبندیانو وهابیانو د کتابونو نه هُم ثابت دي.

د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف او د دیوبندیانو د ډلې مرسته کوونکي دِ د دنیا د یو څو روپو د پاره او د عارضي او فنا کیدونکي دُنیا خلقو ته د خپل دروغژن عِزَّت قائم ساتلو د پاره، هیڅ کله هیڅ کله اللّٰه تَعَالیٰ او د هغه خوږ او آخری رسول صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ مه ناراضه کوئ او د همیشه عذاب او سزا د ځان د پاره مه جمع کوئ. رشید احمد گنگوهي، محمد قاسم نانوتوی، خلیل احمد انبیټهوي او اشرفعلي تهانوی وغیره که غلطي کړي ده، کفر ئې کړې دې نو تاسو د کفریه عبارتونو لیکونکو مرسته کوونکي مه جوړیږئ او د هغه کفریه عبارتونو منلو او قبلولو والا جوړیدو باندې د خپل ځان د پاره کفر مه جمع کوئ.

ما خادمِ اهل سنت، د آل رسول د ښپو خاورو صرف د الله تعالٰی او د هغه د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د رضا د پاره تاسو ته بيا بيا حق طرف ته د راتلو دعوت درکړې دې، او حقيقت مې ستاسو مخې ته پيش کړې دې. د دې باوُجود که ستاسو عقيده هُم دا وي چه "الله دروغ وئيلې شي" او "هغه دروغ وئيلې دې"، "الله ته د هر غيب علم هر وخت نه وي"، "د بنده د کار علم الله ته د مخکښې نه نه وي"، "حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ ته الله چه څنګه يا څومره علمِ غيب ورکړې دې داسې يا دومره علم ماشومانو، ليونو او څاروو ته هم حاصل دې"، "د خاتم النبِيِّين معنٰی آخري نبی نه ده"، "د شيطان علم، د نبـی پاك صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د علم نه زيات دې"، (معاذ الله معاذ الله) او ستاسو ديوبنديانو وهابيانو هغه غلطې عقيدې کومې چه دې فقير مختصراً په خپل کتاب **"د ديوبند نه بريلى ته"** **(حقيقت)**، او په دې کتاب **(سپين او تور)** [يعني رښتيا او دروغ] کښې هم نقل کړې دې، که د "جوہانس برگ سے بریلی" مصنف او د هغه ملګري ټول ديوبنديان وهابيان تبليغيان، په خپلو هُغه عقيدو باندې قائم وي، نو زه خادِمِ اهلِ سُنَّت هغوئي ته بيا دعوت ورکووم چه راشئ په الله فيصله اوکړئ. دا خادمِ اهلِ سنت ستاسو سره د مباهَله کولو د پاره تيار دې. ستاسو تهانوی صاحب ليکلې دي چه کله څوك تباهئ ته

نِزدې وي نو هغه په نرمۍ نه دي پوهه کول پکار. ستاسو تهانوی صاحب فرمائي:

”کومه [د بدن] دانه چه د فاسِدې [یعني نقصاني] مادې نه ډکه وي او د آپریشن ضرورت وي، هلته که دا اووئیل شي چه نه، صرف د پاسه پرې مرهم اولګوئ، اګر چه هغه فاسِده ماده دننه خوره شي او ټول بدن خراب کړي دا خو برداشت کولې شئ خو دا نه شئ برادشت کولې چه په یو ځل [معمولي] څیرلو هغه ټوله فاسده ماده را اُووِیستلې شي.“ (اشرف السوانح، ج۲، ص۶۰)

نور فرمائي: ”کوم ځائ چه د سختۍ ضرورت وی هلته سختی کول هم عدل دې په داسې موقع نرمي کول ظُلم دې.“

(کمالاتِ اشرفیه، ص۸۰)

دا خادمِ اهلِ سنت بیا عرض کوي چه د دې جګړې تقریباً اتیا کاله تیر شو، تر اوسه پورې په سوونو کتابونه لیکل شوي دي. په زروګونو طریقوسره حق واضحه کړې شوې دې، د دې باوجود هم که دیوبندیان وهابیان تبلیغیان په خپل ضِد باندې قائم دي، او حق نه قبلوی، نو بیا د مباهَلې میدان ته په راوتلو کښې مه یَریږئ. د دې خادمِ اهلِ سنت د مباهَلې دعوت قبول کړئ او د قدرت د طرف نه چه کومه فیصله اوشي هغه اومنئ.

⚜ **محترم لوستونکو!** دا خادمِ اهلِ سنت اعتراف کوي چه زه پخپله نه نازيږم، په خپل علم او عمل فخر او غرور نه کووم، دا ګنهګار، خو پخپله خپل ځان د رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د ښارِ مدينهٔ منوره د خاورې برابر هم نه ګنړي. آو که زه نازيږم نو په دې خبره باندې چه زما په غاړه کښې د رسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د غلامانو د غلامۍ پټه [يعني رسۍ] ده. د الله والؤ سره خپل نسبت ساتلو باندې ما ته ضرور ناز دې. زما يقين دې چه زما الله به زما ګناهونه معاف کړی، صرف او صرف د خپل محبوب حضورِ اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ عِزَّت او ناموس او د خوږ رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمْ د عظمَت او صداقت د حفاظت د پاره به ما ضرور کامياب کړي.
اِنْ شَآءَ اللّٰهُ الْعَزِيْز

# زه حُجَّت پوره کووم

د ”جوہانس برگ سے بریلی“ مصنف او د هغه ملګري ټول ديوبنديان وهابيان تبليغيان که حق غوښتل غواړي (او د هغوئي په خپل موقف او خپلې رښتينۍ باندې يقين دې، او زما پيش کړې شوي حقيقت منلو ته تيار نه وي) نو هغوئي دِ حق حق ثابتولو او باطل باطل ثابتولو د پاره د مباهَلې ميدان ته د محبوبِ سبحاني حضرت سَيِّدُنا غوث اعظم

رَحمَۃُاللّٰہِ‌تعالٰی‌عَلَیْہ دي ادنٰی غلام په مقابَله کښ راشي. ګني په ورځ د محشر به د دې خلقو د پاره څه عُذر نه وي.

د دې خادم مقصد صرف د الله او د رسول (صَلَّی‌اللّٰہُ‌عَلَیْہِ‌وآلِہٖ‌وَسَلَّمْ) رضا حاصلول دي. څوك چه زما د نبـی پاك صَلَّی‌اللّٰہُ‌عَلَیْہِ‌وآلِہٖ‌وَسَلَّمْ بې ادبه او ګستاخه دي، د هغه د پاره زما سره هيڅ عزت نشته، او څوك چه زما د رسول صَلَّی‌اللّٰہُ‌عَلَیْہِ‌وآلِہٖ‌وَسَلَّمْ رښتيني غلام او عاشق دې، دا ګنهګار د هغه ټولو عاشقانِ رسول غلام دې، په خپل تحرير او تقرير او علم او عمل کښ دا ګنهګار اَلْحُبُّ لِلّٰہِ وِلِلرَّسُوْلِ وَالْبُغْضُ لِلّٰہِ وَلِلرَّسُوْلِ [يعني د الله تعالٰی او د هغه د رسول د پاره محبت کول او د الله تعالٰی او د هغه د رسول د پاره بغض ساتل، په ] دې اصول پابند دې، او د دې اصول مطابق د ګستاخانِ رسول په رد کښ هم د خپل يو ذاتي سبب په وجه دل آزاي نه کوي. دا ګنهګار، په دې وجه ديوبنديانو وهابيانو تبليغيانو رافضيانو او ټولو باطلو ډلو ته وائي چه ”مونږه مه چيړئ ګني مونږ به تاسو پرېږ نه دو.“ (يعني په مونږه بې بنياده او بې ځايه اعتراضونه مه کوئ، ورنه مونږ به ستاسو د بې شرمئ نه بغير په قلاره نه کښينو.)

هغې که د چا پخپله زړه خفه شوې وي نو معذرت غوارم. الله تعالٰی دِ ما معاف کړي.

په آخِر کښې خپلو لوستونکو ته عرض کووم چه دا خادمِ اهل سنت ستاسو د ټولو نه د دُعا طلبګار دې، او تاسو ته دا درخواست کوي چه په مذهبِ حق اهلِ سنت وجماعت باندې ثابت قدم اوسئ، مونږه سني يقيناً د الله تعالیٰ په فضل و کرم سره، د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ او د هغوئي كامل اتباع كوونكو په طريقه يو او زمونږه د اللّٰه سُبۡحَانَهٗ په بارګاه کښې دا التجاء ده چه زمونږه معبود الله تعالیٰ، د خپل خوږ رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ كامله غلامي زمونږه اعزاز او امتياز اوساتي او په دواړه جهانه کښې د خپل او د حضورِ پاك صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ رضا رانصيب کړي، آمين

وَصَلَّى اللهُ عَلٰى حَبِيْبِه سَيِّدِنا مُحَمَّدٍ وَّ اٰلِهٖ وَ اَصۡحَابِهٖ وَ بارك و سَلَّمَ اَجمَعِين

*****

**فقير: كوكب نوراني اوكاړوي** غُفِرلهٗ

**كراچى**

**1989ء**

*******************

# کتابیات



| شمار | کتاب | مصنف |
|---|---|---|
| 1 | القرآن الکریم | کلام اللہ تعالیٰ غیر مخلوق |
| 2 | احادیث نبوی | ارشادات رسول کریم ﷺ |
| 3 | تھذیب الاسماء واللغات | امام نووی. |
| 4 | حدائق بخشش | اعلیٰ حضرت مولانا شاہ احمد رضا خان بریلوی |
| 5 | ختم نبوت | اعلیٰ حضرت مولانا شاہ احمد رضا خان بریلوی |
| 6 | وصایا شریف | اعلیٰ حضرت مولانا شاہ احمد رضا خان بریلوی |
| 7 | فقیہ اسلام | ڈاکٹر حسن رضا اعظمی |
| 8 | خیابان رضا | جناب مرید احمد چشتی سیالوی |
| 9 | امام احمد رضا (ارباب دانش کی نظر میں) | جناب یاسین احمد مصباحی |
| 10 | امام احمد رضانمبر | ماہ نامہ المِیزان بمبئ |
| 11 | الحق المُبین | حضرت علامہ سید احمد سعید کاظمی |
| 12 | تعارف علمائے دیوبند | حضرت مولانا محمد شفیع اوکاڑوی |
| 13 | راہ رسم منزل ہا | پیر سید غلام نصیرالدین نصیر گولڑوی |
| 14 | تبلیغی جماعت | علامہ ارشد القادری |
| 15 | الرد الحکم المَنیع | پیر سید یوسف ہاشم الرفاعی |
| 16 | مقالاتِ یوم رضا (حصہ دوم) | مولانا قاضی عبد النبی کوکب |
| 17 | اکابر دیوبند اپنے آئینے میں | مولانا حسن علی رضوی |
| 18 | دیوبندی مذہب | حضرت مولانا غلام مہر علی گولڑوی |
| 19 | الدرالمُنظم | مولانا شیخ عبد الحق الہ آبادی |
| 20 | فاضل بریلوی اور ترک موالات | پروفیسر ڈاکٹر محمد مسعود احمد |

| | | |
|---|---|---|
| 21 | کلیات امداد | حضرت حاجی امداد الله مهاجر مکی |
| 22 | نالہ امداد غریب | حضرت حاجی امداد الله مهاجر مکی |
| 23 | فیصلہ ہفت مسئلہ | حضرت حاجی امداد الله مهاجر مکی |
| 24 | نزهة الخواطر | جناب عبد الحئ لکھنوی |
| 25 | تقوية الايمان | جناب محمد اسماعيل دهلوی |
| 26 | تذكيرالاخوان | جناب محمد اسماعيل دهلوی |
| 27 | يك روزی | جناب محمد اسماعيل دهلوی |
| 28 | صراط مستقيم | جناب محمد اسماعيل دهلوی |
| 29 | فتاوٰی رشيديه | جناب رشيد احمد گنگوهی |
| 30 | تاليفات رشيديه | جناب رشيد احمد گنگوهی |
| 31 | امداد السلوك | جناب رشيد احمد گنگوهی |
| 32 | لطائف رشيديه | جناب رشيد احمد گنگوهی |
| 33 | تحذير الناس | جناب محمد قاسم نانوتوی |
| 34 | قصائد قاسمی | جناب محمد قاسم نانوتوی |
| 35 | براهينِ قاطعه | جناب خليل احمد انبيهٹوی |
| 36 | كليات شيخ الهند | جناب محمود الحسن ديوبندی |
| 37 | مرثيه | جناب محمود الحسن ديوبندی |
| 38 | الجهد المَقال | جناب محمود الحسن ديوبندی |
| 39 | الشهاب الثاقب | جناب حسين احمد مدنی |
| 40 | نقش حيات | جناب حسين احمد مدنی |
| 41 | سلاسل طيبه | جناب حسين احمد مدنی |
| 42 | بيان القرآن | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 43 | بوادرالنوادر | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 44 | حفظ الايمان | جناب اشرفعلی تهانوی |

| | | |
|---|---|---|
| 45 | بسط البنان | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 46 | تغییرالعنوان | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 47 | امداد الفتاوٰی | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 48 | نشرالطیب | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 49 | ارواح ثلاثه | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 50 | زاد السعید | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 51 | امداد المُشتاق | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 52 | الافاضات الیومیة | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 53 | قصص الاکابر | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 54 | مقالات حکمت | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 55 | بهشتی زیور | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 56 | رساله الامداد | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 57 | رساله النور | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 58 | تعلیم الدین | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 59 | خطبات حکیم الامت | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 60 | اشرف العلوم | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 61 | اشرف المَعمولات | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 62 | اصدق الرؤیا | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 63 | تنبیهات وصیت | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 64 | کمالات اشرفیه | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 65 | الکلام الحسن | جناب اشرفعلی تهانوی |
| 66 | اِکفار المُلحدین | جناب انور شاه کشمیری |
| 67 | فیض باری | جناب انور شاه کشمیری |
| 68 | اشد العذاب | جناب مرتضٰی حسن دربهنگی |

| | | |
|---|---|---|
| 69 | قطع الوتين | جناب مرتضٰی حسن دربھنگی |
| 70 | تفسير عثمانی | جناب شبیر احمد عثمانی |
| 71 | تذکرۃ الرشید | جناب محمد عاشق الٰہی میرٹھی |
| 72 | تذکرۃ الخلیل | جناب محمد عاشق الٰہی میرٹھی |
| 73 | اشرف السوانح | جناب خواجہ عزیز الحسن |
| 74 | مسك الختام | جناب محمد ادریس کاندھلوی |
| 75 | حکیم الامت | جناب عبد المَاجد دریا بادی |
| 76 | ختم نبوت | مفتی محمد شفیع دیوبندی |
| 77 | سنت و بدعت | مفتی محمد شفیع دیوبندی |
| 78 | ذِکر اللہ | علمائے دیوبند |
| 79 | المُهَنَّد | مفتی عزیز الرحمٰن |
| 80 | فتاوٰی دارالعلوم دیوبند | جناب ابوالحسن علی ندوی |
| 81 | سوانح عبدالقادر | جناب ابوالحسن علی ندوی |
| 82 | دینی دعوت | جناب ابوالحسن علی ندوی |
| 83 | صحبتے با اولیاء | جناب قاری محمد طیب |
| 84 | علم غیب | جناب حبیب الرحمٰن |
| 85 | الختم علٰی لسان الخصم | جناب حسین علی واں بھچرانی |
| 86 | تفسیر بلغة الحیران | جناب غلام خان |
| 87 | جواهر القرآن | جناب عبد الشکور ترمذی |
| 88 | تذکرۃ الظفر | جناب محمد حسن ثانی |
| 89 | سوانح محمد یوسف | جناب منظور نعمانی |
| 90 | سوانح محمد عبد الوهاب | جناب محمد زکریا کاندھلوی |
| 91 | کتب فضائل پر اعتراض | جناب محمد زکریا کاندھلوی |
| 92 | تبلیغی جماعت پر عمومی اعتراضات | جناب محمد زکریا کاندھلوی |

| | | |
|---|---|---|
| 93 | فضائل درود شریف | جناب محمد زکریا کاندھلوی |
| 94 | آپ بیتی | جناب محمد زکریا کاندھلوی |
| 95 | تذکرہ مشائخ دیوبند | جناب عزیز الرحمٰن |
| 96 | شیخ الاسلام نمبر | الجمعیۃ دہلی |
| 97 | ماہ تجلی | جناب عامر عثمانی |
| 98 | القول البلیغ | مفتی محمود بن عبداللہ |
| 99 | کشتی نوح | مرزا غلام احمد قادیانی |
| 100 | حقیقۃ الوحی | مرزا غلام احمد قادیانی |
| 101 | ایک غلطی کا ازالہ | مرزا غلام احمد قادیانی |
| 102 | تحفہ گولڑویہ | مرزا غلام احمد قادیانی |
| 103 | ختم نبوت کی حقیقت | مرزا غلام احمد قادیانی |
| 104 | دعوت الامیر | مرزا بشیرالدین محمود |
| 105 | آئینہ کمالاتِ اسلام | شیخ مبارک احمد |
| 106 | الفضل | قادیان |
| 107 | پیغام صلح | ربوہ، قادیان |
| 108 | حیات طیبہ | عبدالقادر سوداگر مل |
| 109 | احمدیت کا پیغام | مرزا محمود احمد |
| 110 | پیغام حق | مرزا محمود احمد |
| 111 | تفسیر القرآن | قادیان |
| 112 | الانوار | عبدالرحمٰن کوندو |
| 113 | روزنامہ جنگ کراچی | |
| 114 | روزنامہ نوائے وقت راولپنڈی | |

ختم شُد بعون اللہ تعالیٰ